# ادب پوهنه

## (ادبيات او ادبي څېړنې)




ليکوال: سيد محی الدين هاشمي

۱۳۸۱ هـ ش - ۲۰۰۲ م



# کتاب پیژندنه

د کتاب نوم : ادب پوهنه
لیکوال : سید محی الدین هاشمي
د پښتي تذهیب : د استاد ازهر هروي اثر (د همکارۍ اداري د ښکلیو هنرونو ګالري)
خپرونکی : د اریک د کتاب ګرځنده کتابتونونو اداره
پرله پسې نومره : ۱۰۵
لومړی چاپ : ۱۳۸۱ هـ ش، د خپرونکي له خوا، پیښور
د مخونو شمیر : ۱۱۵
کچه : ۱۳,۵ × ۲۱ سانتي متره
د خپرونکي پته : دویم کور، رحمان بابا روډ،
پوسټ بکس: ۱۰۸٤، یونیورسټي ټاون - پیښور
ټیلفون: ۸۵۰۸۳۹ - ۵۷۰٤۳۹۲ - ۵۷۰۲۹٦۲
۸٤۱۲۹٦ - ۵۷۰۲۵۳۱
فکس: ۰۹۱-۸٤۰٤۷۱
الکترونیکي پوسټ: aric@brain.net.pk
کمپوز او طبع : احمد پرنټنګ پرېس، ټیلیفون ۲۱۵۵٤۰
د ویش او پلورنې ځای: د اکبر دفتر (د افغانانو له پاره د مرستو د انسجام اداره)

بسم الله الرحمن الرحيم

د اکبر د اطلاعاتي او نشراتي منابعو مرکز (اریک) له څلورو کالو راهیسې د افغانستان ولایتونو ته د ګرځنده کتابتونونو پروګرام تر لاس لاندې نیولي دي. ګرځنده کتابتونونه چې د فلزي صندوقونو په بڼه جوړ شوي دي، په یو خاص ځای کې ایښودل کیږي. د سیمې خلک ور څخه امانت کتابونه وړي، لولي یې او خپلو شاوخوا خلکو ته یې هم اوروي. کله چې په سیمه کې د کتابتون ټول کتابونه ولوستل شول، کتابتون بلې سیمې ته لیږدول کیږي او یا پرې یو شمیر نور نوي کتابونه ورزیات او هماغه ځای کې پاتې کیږي.

مونږ دا هڅه کړې ده چې د ګرځنده کتابتونونو له پاره داسې کتابونه را ټول کړو چې د لیکنې ژبه یې ساده او د خلکو د اړتیاوړ مطالب ولري، تر څو چې په ورځني ژوند کې له هغوی سره په دیني، ټولنیزو، اقتصادي، ښوونیزو، روزنیزو، روغتیایي، تاریخي، فني، مسلکي او... مسایلو کې مرسته وکړي.

موږ د ګرځنده کتابتونو تر څنګ دا سروې هم ترسره کوو چې خلک څه ډول آثارو او موادو ته اړتیا لري او د کومو موضوعاتو او مطالبو د مطالعې هیله من دي. موږ لومړی هڅه کوو چې غوښتل شوي کتابونه له بیلا بیلو منابعو (کتاب پلورنځیو او خپرونیزو مرکزونو) څخه برابر او راونیسو. په نومورو مراجعو کې د مطالبو او موادو د نشتوالي په صورت کې اریک هڅه کوي چې دا اړتیاوړ آثارو په تألیف، ترجمه او چاپ سره دغه تشه ډکه کړي.

د دغه موخې او هدف د تحقق او په عمل کې پلي کولو په منظور درې کاله

دمخه د لوستونکو د علاقې وړ کتابونو د چاپ او خپراوي کار پیل شو او له هغه وخت راهیسې تراوسه پورې د اریک گرځنده کتابتونونو ادارې د محترمو همکارو مؤسسو په مرسته په دغه برخه کې پیاوړي گامونه اخیستي او گټور فعالیتونه یې ترسره کړي دي.

د ښه او سیستماتیک کار له پاره د اریک د ادارې استازیو او پوشمیر څیړونکو او لیکوالو یو گډهیأت وټاکل شو چې د مطلوبو کتابونو د پلان کولو، آماده کولو او چاپ کولو پړاوونه چې د تکړه او مسلکي لیکوالو له خوا تألیف کیږي، په گډه پر مخ بوځي.

دغه هیأت د افغانانو د صمیمي همکارۍ میرمن نانسي هـچ دوپري، سیدمحی الدین هاشمي، فیض محمد نایاب عطایی، محمد شکیب افضلي او محمد رفیع فاروق څخه تشکیل شوی دی.

مونږ له خپلو ټولو درنولو ستونکو څخه چې د هیواد په بیلا بیلو ښارونو او کلیوالو سیمو کې زموږ له کتابتونونو څخه گټه اخلي، هیله لرو چې خپلې اړتیاوې، غوښتنې او پوښتنې راولیږي او د هیواد له لیکوالو او پوهانو څخه غواړو چې چه له موږ سره په دې لاره کې مرستندوی شي، چې وکړای شو خپلو خلکو ته لا ښه او گټور کتابونه وړاندې کړو.

په درنښت

د اریک د گرځنده کتابتونونو اداره

# فهرست

| عنوان | مخ |
|---|---|

| عنوان | مخ |
|---|---|

# سریزه

په عام مفهوم هغه پوهنه چې ادبیات مطالعه کوي یا د ادبیاتو په هکله څېړنه کوي «ادب پوهنه» یې بولي.

ادبي تیوري، د ادبیاتو تاریخ او ادبي کره کتنه د دغې ادبي پوهنې ډېرې سترې او مهمې څانګې دي ، کتاب پوهنه، متن پوهنه او د ادب پوهنې تاریخ یې په فرعي څانګو کې شمېرل کېږي. د ادب پوهنې دا پورته یادې شوې اساسي او فرعي څانګې هر یوه په لویو او کوچنیو اصلي او فرعي څانګو ویشل کېږي او د مطالعې ډېر پراخ ډګر لري چې په ادبي څېړنو کې مجموعاً «د ادبي علومو» یا «ادبي مطالعاتو» په نامه هم یادېږي.

د اریک د ګرځنده کتابتونو اداري د خپلو علمي او معلوماتي کتاب خپرونو په لړ کې د ادب زده کوونکو او مینه والو ته د هغوی د معلوماتي پانګې د زیاتولو په هیله د «ادب پوهنې» په نوم د یو اثر خپرولو تکل کړی دی، نو ددې چارې د سرته رسولو له پاره یې پر ما غږ وکړ. ما چې په دې اړه څو کاله دمخه، هغه وخت چې د دعوت او جهاد پوهنتون د ادبیاتو او اجتماعي علومو په پوهنځي کې د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې محصلینو ته د «ادب پوهنې بنسټونه» مضمون د تدریس چارې راترغاړه وې، پر درسي نوټونو برسیره مې د ادب پوهنې په نوم یو پنډ او مفصل کتاب لیکلی چې لا تر دې وخته د چاپ وياړ

نه و ورپه برخه شوی، د دوی غوښتنې ته مې په ورین تندي هرکلی وواية. خو دا چې هغه کتاب په څو سوه مخونو کې په مفصله څېړنیزه بڼه لیکل شوی و، نو اړ شوم چې هم يې هغه څېړنیزه بڼه په معلوماتي بڼې راواړم او هم د اریک د ګرځنده کتابتونونو د ادارې د کتاب خپرونې د پروګرام لنډ تنګ چوکاټ ته په کتنې او پاملرنې هغه په (۸۰-۱۰۰) مخونو کې رالنډ کړم. سره له دې چې دا کار له یوې خوا ډېر ستونزور و او له بلې خوا يې د کتاب منځ پانګې (محتوا) او عمومي روح ته لږ ډېر زیان رساوه، خو له ناچارۍ نه لاس په کار شوم، په ډېر غور او احتیاط مې دا کار وکړ او دا کتاب ګوتې ترې جوړ شو چې اوس يې چاپ شوې نسخه ستاسې په لاس کې ده.

دا کتاب ګوتې په شپږو څپرکو کې اوډل شوی او ترتیب شوی دی:

په لومړي څپرکي کې د «ادب پېژندنې» تر سرلیک لاندې یو لړ داسې مطالب راخلي چې لوستونکو ته د ادب معنا، مفهوم، اهمیت او ماهیت ورپېژني، په دوهمه برخه (څپرکي) کې د ادب پوهنې د درې اساسي څانګو (ادبي تیوري، ادبي تاریخ او ادبي کره کتنې) په اړه په لږو ډېر تفصیل سره اړونده مطالب راغلي دي، په درییم څپرکي کې ادبي ډولونه او ژانرونه په ډېر لنډون پېژندل شوي، خو د کتاب د مخونو د ډېربښت له وېرې د نظم او نثر د بېلابېلو ادبي انواعو د مثالونو او بېلګو له راوړلو څخه ډډه شوې ده. په څلورمه برخه کې د «ادبي فنون» تر سرلیک لاندې د ادب په دغې څانګې پورې اړوند مسایل (معانی، فصاحت، بلاغت، بیان او د هغې بېلابېلې برخې، بدیع، لفظي او معنوي صنعتونه، عروض، قافیه او...) په لنډون سره معرفي شوي دي، پنځم څپرکی د «ادبی سبکونه او مکتبونه» تر سرلیک لاندې د پښتو او

دري ژبو د ادبي مکتبونو په شمول لوستونکو ته يو شمير نړيوال ادبي مکتبونه هم ورپيژني او د کتاب په وروستي څپرکي کې د اولسي يا فولکلوري ادبياتو په هکله يو لنډ او ځغلند بحث شوی او د ماشوم ادبياتو په اړه په يو لنډ او ځنگړن بحث سره کتاب پای ته رسيږي.

په پای کې ددې خبرې يادونه ضروري بولم چې له څيړنيزې بڼې نه معلوماتي بڼې ته د کتاب د موضوعاتو د رااړولو پر مهال مې د اړتيا له مخې د کتاب مأخذونه د هر څپرکي په پای کې په مجموعي توگه راخيستي، د کتاب د موضوعاتو ډير لنډون هم ښايي ددې سبب شوی وي چې د لوړ ذوق او ادبي مطالعې د خاوندانو ادبي تنده پوره خړوبه نه کړای شي او د هغوی په زړه او ذهن کې ځينې غوښتنې او پوښتنې راولاړې کړي، چې هغه به په راتلونکي کې د ادب پوهنې په اړه ليکلی مفصل کتاب په چاپ سره حل او ځواب شي. خو زه په دې هيله او باور يم چې دا کتاب گوتې به په عامه توگه د ادبياتو زده کوونکو او د ادبي مطالعې مينه والو ته د ادب ادبي منابعو د پيژندنې په برخه کې پوره مرستندوی شي او د يو لارښود په توگه به هغوی ته په دې لړ کې د زياتې مطالعې او څيړنې لارې چارې برابرې کړي. که زما دا کړې خواري دغه موخه او هدف ترسره کړای شي همدا به زما لويه خوښي او نيکمرغي وي. په همدې هيله

په درنښت

محقق سيد محی الدين هاشمي

کابل - د تلې ۲۵ مه - ۱۳۸۱ هـ ش

لومړی څپرکی:

# ادب پېژندنه

## (عمومیات)

### د ادب لغوي او اصطلاحي پېژندنه:

که څه هم د نورو ټولنیزو علومو او فنونو په څېر «ادب» کوم داسې ټاکلی او ځانګړی تعریف نه لري چې هر چېرې، د هر چاله پاره یوشان د منلو وړوي، له دې سره سره د ادب پوهانو او څېړونکو له خوا چې د ادب کلمې د لغوي او اصطلاحي توضیح، تعبیر او پېژندنې په برخه کې څه ویل شوي دي هغه ډېر مشترک ټکي سره لري.

ادب عربي کلمه ده چې ځینو فرهنګونو یې لغوي معنا: روزنه، ښه معاشرت، ښه کړه وړه، اخلاق او نمانځنه راخیستې ده او په ځینو کې یې معنا: پوهه، فرهنګ هنر او ځیرکي راغلې ده.

پخوا به د ادب کلمه په عامه توګه اصطلاحاً د لغاتو، صرف، نحو، معاني، بیان، بدیع، عروض، قافیه، د خط اصول، د قرائت اصول، انشاء او تاریخ په علومو اطلاق کېدله.

کله کله په عام مفهوم د یوې ژبې ټولو لیکلو آثارو ته هم ادبیات ویل شوي دي، خو اوس یې دغې لفظي او اصطلاحي تعبیر بدلون موندلی او ادب د اجتماعي علومو او فنونو د یوې سترې او مهمې څانګې په توګه هغه ژبنی هنر

او فن دی چې ټولنيز واقعيتونه او حقايق پکې د ژبې په وسيله د ذهني تصويرونو او انځورونو له لارې څرګندېږي. يا په بله وينا:

هره هغه ممتازه وينا ګڼل کېږي (شفاهي) وي که ليکنۍ، نظم وي که نثر، خو چې هنري ارزښت ولري، «ادب» بلل کېږي.

## د ادب يا ادبياتو ماهيت

د ادبي مطالعاتو په لړکې تل دا پوښتنې را مينځته کېږي چې: څه شی ادبيات دي؟ او څه شی په ادبياتو کې نشو شميرلی؟

دا پوښتنې ظاهراً ډيرې ساده او سطحي برېښي، خو ځوابونه يې بيا هومره آسانه نه دي.

د لويديځ يو ادب پوه اډوان ګرينلا ټول چاپ شوي او خطي آثار په ادبياتو کې شميري.

که مورږ د نوموړي دا پورتنی نظر ومنو او د يوې ژبې ټول چاپ شوي او خطي آثار ادبيات وګڼو، نو بيا نور ټولنيز او ساينسي علوم (لکه: فزيک، کيميا، بيولوژي، هندسه، تاريخ، جغرافيه او ...) څنګه د ځانګړو علومو او فنونو په توګه مطرح کولی شو. په همدې اساس ويلای شو چې د يوې ژبې ټول آثار ادبيات نه دي.

ادبپوهانو د محتویٰ له مخې ادبيات پر دوو سترو برخو ويشلي دي:

۱ - تخليقي يا هنري ادبيات.

۲ - تحقيقي يا څېړنيز ادبيات.

تخليقي يا هنري ادبياتو ته اصلي او واقعي ادبيات وايي، چې په هغو کې:

شعر، لنډه کیسه، ډرامه، ناول، رومان، ادبي ټوټې (پارچې) ټکل، طنز، ادبي سفرنامه، ادبي راپورتاژ او نور شامل دي. او په تحقیقي یا څېړنیزو ادبیاتو کې د یو لړ علمي، ټولنیز و اصولو او معیارونو له مخې د ادبیاتو د منشاء، ماهیت ارزښت او اهمیت په باب څېړنې او تحقیقات شامل دي.

## د ادبیاتو موخه او غرض

له ډیرې پخوا زمانې راهیسې د ادب پوهانو له خوا د ادب په هکله دوه نظریې ډیرې عامې دي:

(۱) ادب د ادب له پاره ، (۲) ادب د ژوند له پاره.

د لومړي نظر پلویان ادب له یوې مخې له خپل ټولنیز هدف او ارزښت نه رابیلوي او پردې باور دي چې ادب یوازې او یوازې انسان ته روحي خوښي، لذت او تسکین وربخښي او نور هیڅ نشي کولای. دوی د ادب په محتوا او مضمون کې د نغښتي ټولنیز اخلاقي، روزنیز، تنبیهي او هڅونکی ځواک له اغیزو او اهمیت نه سترګې پټوي.

د دویمې نظریې (ادب د ژوند له پاره) پلویان بیا په دې عقیده دي چې ادب د ښکلاتیز او روحي لذت او تسکین تر څنګ، د ټولنیزې او اخلاقي روزنې، اصلاح، دا ذهانو د روښانولو او لارښوونې دنده هم پر غاړه لري. که موږ له پخوا څخه تر اوسه پورې د یوې ژبې ادبیات مطالعه کړو، نو لیدلی شو چې ادبیاتو همیشه په یوه او بله بڼه ټولنیز فکري ارزښت او مفهوم لرلی دی. دغه فکري ارزښت او مفهوم په واقعیت

کې هغه، مقصد، غرض، موخه او هدف دی چې لیکوال یې نورو ته رسول غوښتي دي او د همدغه موخې او هدف د سرته رسولو له پاره ادیب له ادب نه د یوې اغیزمنې وسیلې په توګه کار اخیستی دی.

که د هر قوم، ملت او ژبې ادبي تاریخ ته ځیر شو، راته به څرګنده شي چې د هغوی دردمنو او با احساسه ادیبانو په یوه یا بله بڼه د خپلې عقیدې او فکر د تبلیغ یا خپراوي، د قوم او ملت د ذهني ویښتیا به، معنوي لوړتیا او اصلاح له پاره ادب د یوې وسیلې په توګه کارولی او په دې ترتیب یې په خلکو کې د کار، عمل، اصلاح، سمون او بدلون جذبه راولاړه کړې ده. د مثال په ډول: که د پښتو او دري ژبو په ادبي تاریخونو کې د فردوسي، خوشحال خان ختک، سعدی، حافظ شیرازي، رحمان بابا، اقبال او نورو نومیالیو لیکوالو او ادیبانو آثار ولولو، راته به معلومه شي چې هغوی څنګه ادب د دیني، مذهبي عقایدو او د اجتماعي، اخلاقي خیرښیګڼې، د قومي او ملي احساس د بیدارۍ او تبلیغ له پاره یوه ډېره اغیزمنه وسیله ګرځولی او خپل ټولنیز هدف یې سرته رسولی دی. په ادب کې ښکلاتیز اړخ او د ادبي فنونو استعمال د دې له پاره کیږي چې ادیب مقابل لوري ته خپل پیغام او مقصد ژر او په ښه ډول ورسوي. په هغه کې احساس او عاطفي خوځښت را پیدا کړي او ذهن یې د پیغام اخیستنې او په عرض او مقصد پوهیدنې ته ښه متوجه او چمتو کړي.

ادیب د ټولنې عادي وګړی نه دی. هغه څه چې په ورځني ژوند کې پیښیږي، یا هغه ناخوالې، ستونزې او ربړې چې ټولنه ور سره مخامخ ده، د ادیب پر احساس او عاطفه ژوره اغیزه کوي. ادیب چې د خپلې پوهې او استعداد په ځواک له هغې څخه کومه منطقي نتیجه اخلي او بیا یې د خپل

تخیلي قوت په ملګرتیا په مناسب الفاظو د شعر یا ادبي هنري نثر په کوم قالب او فورم کې خلکو او ټولنې ته وړاندې کوي، همدغه تخلیقي ادب دی.

ادبیات په واقعیت کې د اجتماعي ژوند په باب د ادیب تجربې وي. په ادب کې د ټولنیز ژوند ډیر اړخونه په یوه یا بله بڼه انځور شوي وي چې د خلکو غوښتنو ته ځواب ویلی شي. ادب د ژوند په باب زموږ تجربې زیاتوي او موږ له واقعیتونو سره له نژدې نه آشنا کوي.

په ادبیاتو کې د پوهنې او اجتماعي روزنې اصلاحي اړخونه سره یو له بله نه بېلېدونکې اړیکې لري. یوازې د خوند اخیستنې او ساعت تیرۍ له پاره د ادبیاتو تخلیق یا را مینځته کول او مطالعه کول یو بې ځایه او بې عاطفې کار دی.

دا چې د هرې ژبې ادبیات په یوه ټاکلې زمانه او سیمه کې د خلکو ژوندي افکار دي چې په الفاظو کې خوندي او په لیکلې یا ویلې (شفاهي) ډول له یوه نسل څخه بل ته انتقالیږي، د ادیب تخلیق کړی ادب د خپل عصر د وګړو د عقایدو، کلتور او ټولنیز ژوند هغه هنداره ده چې د هغوی رښتیني ژوند پکې په یوه یا بله بڼه بریښي، نو د ساعت تیرۍ له پاره یې مطالعه کول په واقعیت کې له ژوند سره اړیکې شکول او پر حقایقو سترګې پټول دي.

## د ادب د جوړښت بنسټیز توکي

مشهور انګریز کره کتونکي هیډسن د ادب د جوړښت له پاره څلور بنسټیز توکي ښودلي دي:

(١) عقلي او ذهني، (٢) جذباتي او عاطفي، (٣) تخيلي، (٤) تخنيكي او فني.

د هر ادبي اثر په ترکيب کې بېلابېل توکي (عناصر) شامل دي چې د همدغو توکو له ترکيب او ګډون څخه په ادب کې رنګيني رامينځ ته کيږي، يو رښتيني، عالي او تل پاتې ادب کې تر هر څه ړومبی ادراکي او عقلي عنصر شامل وي. ددې وينا مطلب دادی چې هر اديب لومړی د عقل او ادراک په مرسته د يوې موضوع چوکاټ تياروي او د همدغه چوکاټ پر بنسټ د خپل ادبي اثر مانۍ رغوي.

دلته ددې خبرې يادونه ضروري ده چې يوازې په دغه «ادراکي او عقلي عنصر» ادب نشي پنځيدلی يا تخليق کيدلی. د ادب د تخليق له پاره په هغه کې د «عاطفي او جذباتي عنصر» مالګه او مصالحه ورګډول هم ضروري دي. دغه مالګه او مصالحه چې هر څومره په زړه پورې او په اصطلاح تيزه وي، په هماغه پيمانه په ادب کې خوند - رنګ يا په بله وينا جذابيت او په زړه پورې والی پيدا کيږي. برسيره پردغو دوو پورتنيو عنصرونو «تخيل» هم د ادب په جوړښت او تشکل کې اساسي عنصر دي. اديب دغه د تخيل توکي په ادب کې ددې له پاره ورګډوي چې د لوستونکي په متخيله قوه باندې اغيزه وکړي او د اديب د خيال په ژور والي پوه شي. نو ضروري ده چې د اديب تخيلي ځواک دومره پياوړی وي چې لوستونکی د تخيل پر وزرونو والوزوي او د اديب د وينا پيغام او د موخې درک ته يې متوجه کړي.

اديب د تخيل په وزرونو د لوړ پرواز اوالوتنې له پاره زياتره له تشبيه، استعارې، کنايې او مجاز څخه کار اخلي، خو کله کله دا کار اخيستنه د

مبالغې تر پراوه هم رسيږي. هرڅومره چې په ادب کې دغه توکی (تخيل) ځواکمن وي، په هماغه پيمانه ادب لوړ او تل پاتې ګرځي.

عقلي، جذباتي او تخيلي توکي د ادب مواد تياروي، د اديب خيالات، احساسات او تخيل د همدغه موادو په جوړښت کې مرسته کوي. برسيره پر دغو عناصرو يو بل ډير مهم عنصر هم شته چې له هغې پرته د ادب جوړښت امکان نه لري، هغه «تخنيکي او فني عنصر» دی. د ادب د تخليق او پنځونې له پاره يو لړ قواعد جوړ شوي چې د ادب په ښيګڼه، ښکلا او اغيزه کې زيا تـوالی را منځته کوي. لومړني درې توکي دا ښيي چې په ادب کې کومه خبره يا پيغام نوروته وړاندې شي، خو دا څلورم توکي دا راښيي چې دغه خبره يا پيغام په څه ډول نوروته وړاندې شي، چې ښه او ژر اغيزه وکړي او د اديب موخه تر سره شي.

## د ادب موضوعات

دا خو يوه منلې خبره ده چې ادب په ژوند پورې اړه لري، او دا چې ژوند ګڼ اړخونه لري، له همدې امله ادب هم ګڼ اړخونه لرلی شي. دې واقعيت ته په پاملرنه ويلای شو چې: د ژوند هره برخه او پيښه د ادب موضوع کيدلی شي.

ادب څيړونکو په عامه توګه د ادب موضوعات پر پنځو برخو ويشلي دي:

**۱- ذاتي يا خپلې تجربې:** چې د اديب په شخصي ژوند پورې اړه لري.

**۲- انساني تجربې:** هغه تجربې دي چې ټول بشر يا انساني نوعې په تجربو پورې اړوندې دي.

**۳- ټولنیزې (اجتماعي) تجربې:** چې د ټولنې په ګډو او عمومي تجربو پورې اړه لري.

**٤- په مادي نړۍ پورې اړوندې تجربې:** هغه چې په طبیعت او خارجي نړۍ پورې اړوندې وي.

**٥- په ادب پورې اړوندې تجربې:** چې په هغو کې ادیب یوازې د خپل فن او هنر بشپړتیا ته ګوري یا د خپل هنر پرمختیا او لوړتیا په پام کې نیسي.

لنډه دا چې ادب پخپله د ادیب، د ټولنې او نړۍ د نورو افرادو د تجربو خلاصه او نچوړ دی. دغه تجربې په اصل کې مړې پیښې وې چې د انسان په ذهن کې پرتې وې. ادیب د ادب په وسیله هغو ته ژوند ور بخښي. له همدې امله ادب د ځانګړو او ټولنیزو تجربو د لیږدونې ډېره غوره او اغېزمنه وسیله ګڼلی شو.

ترکومه چې خبره د ادیب په ذات یا خپل ځان پورې اړه لري، په هغه کې ادیب د خپلو ذاتي یا شخصي جذباتو ثرګندویې کوي، یا په بله وینا ادیب په دغه ډول ادب کې د خپل فکر، ذهن او جذباتو داخلي نړۍ انځوروي. د دې ډول تخلیق شوي ادب غوره بیلګې عشقیه او صوفیانه شاعري او مرثیه لیکنې دي.

د اوسنیو ادب څېړونکو په نظر په ادب کې مهمه داده چې ادیب له خپلې ذاتي نړۍ څخه بهر چاپیریال (ټولنې او نړۍ) ته را ووځي، د خپل لید ساحه او دایره پراخه کړي، له ځان نه بهر د ټولنې او نړۍ ترجماني وکړي.

## ادبي ژبه

د مخه تر دې چې په ادب یا ادبي اثر کې د ژبې کارونې په اړه څه ووایو، لازمه ده یادونه وکړو چې هره لیکنه له ځینو واحدونو څخه چې

« جملې » يې بولي، جوړيږي او جمله له ځينو توکيو (اجزاوو) څخه چې « کلمې » ورته وايي، جوړه وي.

کلمې د ژبې هغه قرار دادي نښې دي چې ليکوال د هغو په کارولو سره خپل فکر او خيالات څرګندوي (بيانوي) او لوستونکی د هغو په لوستلو سره د ليکوال له ذهني مفاهيمو سره آشنا کيږي.

يوه ليکنه هغه وخت ادبي ارزښت تر لاسه کولی شي چې ليکوال يا اديب له هغو وسيلو څخه چې په لاس کې يې لري (کلمې) په ډيره ښه او مناسبه توګه کار واخلي.

په دې معنا چې کلمې او د هغو د کارونې مناسب ځايونه وپيژني او پخپله ليکنه کې له داسې کلمو څخه کار واخلي چې د ده مقصد او پيغام ژر، په ښه او آسانه توګه مقابل لوري (لوستونکي يا اوريدونکي) ته ور انتقال کړي. کوم پيغام چې په ليکنه کې نغښتی وي هغه د لوستونکي په ذهن کې کښيني.

ايرانی ليکوال پرويز خانلري پخپل اثر « درباره ء زبان فارسی » ۱٤۷ مخ کې په دې هکله وايي: « ليکوال يا اديب دادنده لري چې الفاظ او تعبيرونه د يو صراف او زرګرپه څير په حساس محک و آزمويي، کره او ناکره يې سره بيل کړي او ټول توکي (اجزاوې) په ژوره توګه داسې وپيژني چې هر يويې په مجموع کې په خپل ځای مناسبه ښکلا ولري، دغه محک له ذوق څخه پرته بل څه نه دی. خو دغه ذوق د نورو سترو او پياوړو هنرمندانو د آثارو او افکارو په دقيقه او ژوره مطالعه او د هغو د کار په طريقو اولارو چارو باندې په پوهيدلو سره پالنه او پياوړتيا مومي.

همدغه ليکوال پخپل يو بل اثر (روش نويسندگان بزرگ - ۱٤۲مخ)

کې لیکي: «لیکوال چې کومې کلمې کاروي هغه باید په ډېر غور او دقت انتخاب کړي. هغه باید هغه کلمه چې لومړی او ژر ذهن ته ورځي ونه کاروي. باید په پام کې ولري چې حتی دوه کلمې هم داسې نشي موندلی چې کټ مټ یو ډول مفهوم او معنا ورکړي. همیشه د ډېرو کمو تو پیرونو او اختلافاتو شته والی هم مترادفې کلمې یوه له بلې بیلولی شي. لیکوال باید دې اختلاف ته پام وکړي او هماغه کلمه پکې انتخاب کړي چې دده ذهني مفهوم ښه او ژر نورو ته رسولی شي.»

د پایلې او نتیجې په توګه ویلای شو چې د هر ادبي اثر ژبه باید له ادبي ښکلو او ځانګړنو نه برخمنه وي او د اثر په ټولو برخو کې د لفظ او معنا تر مینځ اړیکې او فکري تسلسل موجود وي.

## غوره او معیاري ادب

د ښه او غوره (معیاري) ادب د پېژندنې په لړ کې به تر هر څه لومړی دا بس وي چې ووایو:

ښه او معیاري ادب همغه دی چې پکې د جذباتو او احساساتو ربښتینې ترجماني شوې وي. په هر ادب کې چې دغه ځانګړنه موجوده وي هغه لوړ او معیاري ادب دی، ځکه چې په عام مفهوم په ادبي ځیرنو کې ادب د ژوند تفسیر او هینداره ګڼل کیږي، هر څومره چې په هغه کې د ټولنیز ژوند ربښتینی انځور موجود وي، په همغه پیمانه یې د معفولیت او مقبولیت چانس زیات دی.

که څه هم په یو معیاري ادب کې د لیکنې او وینا ادبي اسلوب او سبک ته هم پاملرنه ډیره ضروري ده، خو باید هیره نه کړو چې سبک یا اسلوب یوازې او یوازې د فکر او خیالاتو د څرګندولو یوه وسیله ده، په ادبي اثر کې اصلي روح همغه جذبه او احساس دی چې د انساني ژوند رښتینې ترجماني وکړي.

سره له دې چې ځینې ادب پوهان «ادب د ادب له پاره» نظریه وړاندې کوي، خو باید ووایو چې دا نظریه نن سبا ډېره لنډه تنګه او محدوده ښکاري. په عام مفهوم ادب د ژوند تصویر دی. دا نظریه نیغ په نیغه د ژوند او د ژوند له تجربو سره اړیکې لري. او خاص د ژوند له پاره دی. کوم ادب چې د ژوند له پاره نه وي، هغه به خامخا د ژوند له پاره په یوه یا بله بڼه زیانمن او خطرناک وي. خو دغه ډول ادب په ټولنه کې تل پاتې او همیشنۍ بڼه نشي خپلولی او ژر له مینځه ځي.

له همدې امله ویلی شو چې ښه، لوړ او معیاري ادب همغه دی چې پکې نغښتی مفهوم او وینا له ژوند او انساني تجربو سره سمون ولري او له خلکو سره یو ځای روانه وي. دا چې د ارنلډ له نظره «ادب د ژوند تنقید دی» دلته دا پوښتنه را مخې ته کیږي چې موږ د ژوند تیرولو کومه لار او طریقه غوره ګڼو؟ معلومه خبره ده چې انسان په فطري توګه ښه او پاکیزه ژوند تیرول غواړي (یعنې خوښوي یې) دغسې ادب هم باید پاک، غوره او معیاري وي. ددې مطلب دادی چې په ادب کې باید داسې اخلاقي ارزښتونه انعکاس ومومي چې د هغې له مخې زموږ ژوند پرمختګ او ترقي وکړي. که ځینې ادیبان د ژوند له مسلطو ټولنیزو ارزښتونو څخه سر غړونه (بغاوت) وکړي، څرګنده خبره ده چې تخلیق کړی ادب یې په ټولنه کې ارزښت او پایښت نه شي موندلی.

په لنډه توګه ویلای شو: لکه څنګه چې انسان تل پاک سوتره او ښکلی ژوند تیرول غواړي؛ داسې ژوند چې هیڅ ډول ریا کاري، مکاري، تګي او برګي پکې نه وي، نو تل نه باید د ژوند په همدغه لاره یون او حرکت وکړي او په داسې پړاو کې واقع شي چې ادب یې هم پاک او رښتینی شي، دغسې ادب د قوم او ملت ویاړ او په رښتینې معنا "معیاري ادب" بللی شو.

## په ادب کې د ادیب ځیره

د ادب څېړونکو په عقیده غوره او رښتینې ادب هغه دی چې په هغه کې د ادیب روح وځلیږي او لوستونکي ته پکې د ادیب ځیره له ورایه څرګنده شي.

میتهو ارنلډ ادب ته د ژوند تنقید او ترجمان وایي. د نوموړي په نظر رښتینی ادب همغه دی چې د ادیب د زړه او دماغ زیږنده وي. له همدې امله دا اړتیا پیښیږي چې د اثر یا تصنیف له پیژندګلوۍ څخه د مخه د هغه لیکوال او را مینځته کوونکی وپیژندل شي، ځکه چې لیکنه یا ادبي اثر په اصل کې د ادیب د ذهن انځور دی. لوستونکي ته لازمه ده چې لومړی یې له ادیب سره اړیکې پیدا کړي یا په بله وینا هغه ښه وپیژني؛ چې د دغه پیژند ګلوۍ له مخې بیا د هغه په احساساتو او جذباتو ښه پوه او د ادبي اثر معنا، مفهوم او پکې نغښتی پیغام ژر او په آسانه درک کړي. ځکه یوه رښتینې او ډیره اغیزناکه مطالعه هغه وخت کیدای شي چې د اثر د لیکوال یا ادیب او لوستونکي د ذهن تر مینځ مستقیمې اړیکې پیدا شي. لنډه دا چې په هر عالي او غوره ادب کې د هغه د تخلیق کوونکي شخصیت په یوه یا بله بڼه څرګندیږي. څومره چې په یوه ادبي

اثر کې د اديب خپلې ذاتي تجربې په رښتينې توگه انځور شي، په همغه پيمانه په ادب کې رښتينوالی، جدت او اصيلتوب موجودوي او د غسې ادب يا ادبي اثر د لوړ او غوره ادب گڼلو او منلو وړ دی.

يو ښه او عالي اديب د ژوند بيلا بيلو اړخونو ته په ډير ژور نظر گوري، واقعيتونو ته ورننوځي کيږي. اديب د ژورې کتنې او فکر په نتيجه کې د ژوند ډيرو باريکو او نازکو گوښو ته ور داخليږي چې د ټولنې عام وگړي يې نشي ليدلای. د نوميالي ادب پوه ملتن په وينا:

«ښه او غوره ادب د اديب د ژوند وينه ده» نو که لوستونکی د همدغې روحيې له مخې په اخلاص او صداقت سره د اديب اثر مطالعه کړي، خامخا د اديب يا ادبي اثر په روح پوهيدلی شي.

د عادي او عالي ادب يو ډير ستر توپير په همدې کې دی چې د عادي يا معمولي ادب تخليق کوونکی د معمولي ليدلو او يا اوريدلو خبرو (مسايلو) يادونه کوي، خو په غوره او عالي ادب کې اديب خپلې ذاتي تجربې وړاندې کوي، نو له همدې امله "کار لايل" د غه ډول ادب ته اصلي غږ وايي.

## ادبيات او ادبي څيړنې

ادبپوهان ادبيات پر دوو سترو برخو ويشي: يوې ته يې «تخليقي ادبيات» او بلې ته يې د «تحقيقي ادبياتو» نوم ورکوي. په لومړۍ برخه کې تخليق شوی ادب (لکه شعر او د هنري نثر بيلابيل ډولونه) او په دويمه برخه کې د دغه رامينځته شوي ادب په هکله تحليلي او تفسيري څيړنې شامليږي.

د «ادبياتو» او «ادبي مطالعاتو» يا «ادبي څيړنو» تر مينځ په

نږدې اړیکه او توپیرونو باندې ډېر اوږده او کرکېچن بحثونه شوي دي، د دواړو ترمنځ که له یوې خوا ډېر نږدې اړیکې لیدل کیږي، تر څنګ یې د بیلتون داسې لیکه او کرښه هم تر سترګو کیږي چې د دوی خپله ځانګړتیا او جلاوالی ثابتوي.

د دواړو ترمنځ یو ډېر ستر توپیر دادی چې «ادبیات» تخلیقي جنبه او اړخ لري، ادیب یې رامینځ ته کوونکی او ایجاد ګردی او «ادبي مطالعه» د ادب په هکله د یو ډول پوهې تر لاسه کول یا زده کړه ده؛ په دې معنا چې لوستونکی د نورو تخلیق کړي ادبي آثار لولي او تر تحلیل وروسته پرې ځان پوهوي.

یا په لنډه وینا: ادیب هنرمند دی او ادبي مطالعه کوونکی د لوستونکي او زده کوونکي په ډله کې شمیرل کیږي.

ځینو بیا د ادبیاتو او ادبي مطالعاتو ترمینځ د اړیکو ښودلو په لړ کې له دې توپیر څخه له یوې مخې سترګې پټې کړې او ویلي یې دي: څوک چې پخپله ادیب نه وي او ادبي لیکنه ونه کړای شي په ادبیاتو نه پوهیږي، نو ځکه باید ادب څېړونکی او د ادبیاتو مطالعه کوونکی هم «ادیب» وبولو، یعنې یو څوک هغه وخت د بل په شعرونو او یا د هنري نثري لیکنو (لنډه کیسه، ډرامه، ناول او...) باندې پوهیدای شي چې پخپله یې شعرونه ویلي او نثري لیکنې یې کړې وي.

حال دا چې واقعیت داسې نه دی. د بېلګې په توګه: موږ داسې ډېر نالوستي ولسي شاعران لرو چې د شعر فنون یې هیڅ نه دي لوستي، بد یعې

لفظي او معنوي صنايع نه پېژني، تشبيه، استعاره، کنايه، مجاز، قافيه، د هغې ارکان او عيبونه ورته نه دي معلوم، خو داسې ادبي فن پارې يا ادبي آثار يې تخليق کړي دي چې ډېر ستر ادبي هنري ارزښت لري. همدارنګه ډېر داسې ادب څېړونکي پېژنو چې د شعر په ټولو فنونو او ادبي تلازماتو پوهېږي، خو شعر نشي جوړولای.

نو ويلای شو چې: «ادبيات» او د ادبياتو په هکله پوهه او معلومات دوه بېل شيان دي. ادب پخپله د «اديب» ابتکار او تخليق دی.

اديب په دې ابتکار کې نوی فکر او نوی مضمون را پيداکوي. که موضوع زړه هم وي، نو د ادا، بيان او افادې طرز يې نوی وي.

اديب په دغه عمليه کې له خپلو کتنو او اورېدنو څخه نوی فکر او معنا را باسي، د خپل فطري استعداد او تخيلي ځواک په وسيله له عادي ببنو څخه نوي نتايج اخلي او نورو ته يې وړاندې کوي. خو «ادبي مطالعه» د تخليق شويو ادبي آثارو لوستنه ده.

څېړونکی هغه څوک دی چې د نورو له خوا تخليق شوي آثار د خپلې پوهې او بصيرت په رڼا کې تحليل، تفسير، تشريح او ارزيابي کوي، ارزښت، اهميت او ادبي مقام يې ټاکي، نورو ته يې ښېګڼې او بد ګڼې بيانوي. سره له دې چې اوس ځينې ادبپوهان د ادبياتو په هکله څېړنې او سپړنې په ادبياتو کې نه شميري، خو دا چې دغه څېړنې عموماً د ادب د ماهيت او محتوی د تشريح، توضيح او پېژندنې له پاره کېږي، نو د ادب له چوکاټ څخه يې را بېلونه هم له ستونزو ډک کار دی.

د يادونې وړ ده چې د اديب له پاره په عامه توګه د امکان تر حده د ادب په هکله او په ځانګړې توګه په خپل فن او ادبي هنري ځانګې پورې اړونده ادبي مطالعه لازمي او ضروري ده، ځکه چې پر ته له ادبې مطالعې يې فن سمه او مناسبه وده نشي کولای.

**ماخذونه:**

۱- ډاکټر سلام سنديلوی، ادب کا تنقيدي مطالعه، مکتبه ميری لائبريری، لاهور، ۱۹۸۹م.
۲- هيواد مل، زلمی، فرهنګ ادبيات پښتو، دريم ټوک، کابل، د چاپ او خپرولو دولتي کميټه، ۱۳٦٦ هـ ش کال.
۳- تږی، حبيب الله (پوهاند) د ادب تيوري، کابل پوهنتون، د ژبو او ادبياتو د پوهنځي درسي لکچرنوټ.
٤- هاشمي، سيد محی الدين، د ادبي اصطلاحاتو تشريحي فرهنګ، (ناچاپ).
۵- شينواری، دوست (سرمحقق)، د ادب تيوري اساسونه، کابل، ۱۳٦۵هـ ش.
٦- هاشمي، سيد محی الدين، د ادبپوهنې بنسټونه، د دعوت او جهاد پوهنتون درسي لکچر نوټ.
۷- الهام محمد رحيم (داکاډيمسين کانديد)، د ادب مسألې، د افغانستان د ليکوالو انجمن، ۱۳٦۷ هـ ش.

دويم څپرکی:

# د ادبپوهنې اساسي څانګې

## پيژندنه:

ادب پوهنه په عام مفهوم هغه پوهنه ده چې د ادبياتو په هکله څيړنه کوي، يا په بله وينا هغه پوهنه چې ادبيات مطالعه کوي ادبپوهنه بلل کيږي.

دغه پوهنه له فلسفې، ښکلا پوهنې، هنر پوهنې او ژبپوهنې څخه مرسته غواړي.

ادب څيړونکو دغه پوهنه په دې لاندې دريو سترو اساسي څانګو ويشلې ده:

۱- ادبي تيوري

۲- ادبي تاريخ (د ادبياتو تاريخ)

۳- ادبي کره کتنه

برسيره پردغو څانګو ادب پوهان کتاب پوهنه، متن پوهنه او د ادبپوهنې تاريخ هم د ادبپوهنې فرعي څانګې ګڼي.

موږ دلته د ادبپوهنې درې لومړنۍ اساسي څانګې تر جلا جلا سرليکونو لاندې په لنډون سره درپيژنو:

# لومړی: ادبي تیوري

د مخه تردې چې د ټولنیزو علومو د یوې څانګې په توګه د ادبي تیوري د رامینځته کېدو او د هغې د تاریخي پرمختیایي او پراختیایی سیر په هکله بحث وکړو لازمه ده چې ادبي تیوري دروپېژنو:

**پېژندنه:**

ادبي تیوري هغه علم یا پوهنه ده چې دادبي آثارو د ټولنیز ماهیئت ځانګړنې اوادادب د ودې او انکشاف قوانین تر مطالعې او څېړنې لاندې نیسي.

په یوې بلې پېژندنې کې لولو چې:

ادبي تیوري د ادب پوهنې ستره او اساسي څانګه ده چې د ادب ټولنیز ارزښتونه، د ادب د پراختیا ټاکلي پړاوونه، د ودې او انکشاف تاریخي عنعنه، د ادبي آثارو اساسي فورم او نورې ځانګړنې تر څېړنې لاندې نیسي او د ادبي موادو د څېړنې له پاره عمومي لارې او اصول ټاکي.

په لنډه وینا ویلای شو چې: ادبي تیوري د ادب د بېلا بېلو برخو او مسایلو په هکله د نظریاتو مجموعه ده.

په عامه توګه په ادبي تیوري کې د ټولنپوهنې د علمي قوانینو له مخې د ادب او ټولنې تر مینځ اړیکو، د ادبیاتو د پیدایښت د عواملو، د ادبي مکتبونو، میتودونو او سبکونو، په ادبیاتو کې د شکل او مضمون،... او د بېلا بېلو ادبي انواعو اوژانرونو په هکله بحث او څېړنه کېږي.

# د ادبي تيورۍ تاريخي انکشافي سير

د ادبي تيورۍ د رامينځته کيدلو او د يوې ادبي پوهنې او علم په توګه د هغې د مطرح کيدلو مسئله ډيره لرغونې ده. ادبپوهان د خپلو ادبي څيړنو په بهير کې د دې علم پيدا ينبت ډير پخوانی ګني او ريښې يې له نن نه (۲۳۰۰) کاله پخوا زمانې ته رسوي. دوی استدلال کوي چې ارسطو (۳۸٤- ۳۲۲ ق م) «د بوتيکا» په نامه يو اثر چې هغه بيا وروسته عربانو «بوطيقا» ياد کړی دی، ليکلی او په دغه اثر کې يې د ادب ټولنيز ارزښت ته خپله زياته پاملرنه ور اړولې ده، چې په عامه توګه يې پخپل وخت کې د ادب په باب ډير و پوښتنو ته ځواب ويلی دی.

نوموړي په دغه اثر کې ادبي غوښتنو ته ځانګړی معيار ټاکلی و، واقعيت پيژندنه او پر هغه باندې يې د ادب د اغيزې ارزښت هم ښودلی دی.

ارسطو په همدې کتاب کې ايپيک (حماسي)، ليريک (غنايي) او ډراماتيک (ډرامائی) آثارو تر مينځ د بيلونې اساسي بريدونه تشريح او توضيح کړي دي. همدارنګه يې نظم، د هغه وزنونو او نورو ځانګړنو ته هم پوره پاملرنه کړې ده.

له ارسطو څخه را وروسته تر نن پورې په نړۍ، په ځانګړې توګه په لويديځ کې د يو علم يا ټولنيزې پوهنې په حيث ادبي تيوري ته ډير کار شوی دی. په دې لړ کې د ادب څيړنې او سپړنې په اړوند د بيلا بيلو ادبپوهانو له خوا ځينې اصول او قوانين هم وضع شوي چې ځينې يې په عامه توګه تقريباً تر ډيرې اندازې د هرې ژبې پر ادب د تطبيق وړ دي. خو د دې تر څنګ بيا د بيلا بيلو

سياسي او فلسفي افکارو تر مستيقم اغيز لاندې د "مترقي ادبي تيورۍ" په نوم داسې نظريات هم وړاندې شوي چې علمي او منطقي بنسټ نه لري، مګر پلويان او وضع کوونکي يې د «علميتوب» او «مترقي توب» دعوه کوي. د بيلګې په توګه د سوسياليزم او کمونيزم د پوچې مفکورې پلويان چې هر څه ته له مادي اړخه ګوري او معنا ته په اساسي او بنستيز ارزښت نه قايليږي. دوی چې په دې لړ کې د «انقلابي او مترقي ادب تيورۍ» په نوم کوم نظريات وړاندې کوي هغه د کمونيزم د «خيالی جنت» په څير له حقيقت او واقعيت څخه ډير لرې دي، د دوی په ادبي نظرياتو کې هم هغه ناسموالی او غير علميتوب ځرګند دی چې د دوی له پوچې ايډيا لوژۍ څخه يې نشأت کړی دی.

په تاريخي لحاظ د ادبي تيورۍ په هکله د رنسانس په دوره کی هم ډير کار شوی دی. دا هغه وخت دی چې ستر اديبان او پياوړي ادبيات پکې رامينځ ته شوي او زيات شمير ليکوالو د ادب د ماهئيت او اهميت پيژندنې او پر هغې پوهيدنې ته خپله پاملرنه وراړولې او په زړه پورې ليکنې يې کړې دي، چې په دې لړ کې د هسپانيې نوميالی ډرامه ليکونکی لوپی وريګ (۱۵۶۲ - ۱۶۳۵م) فرانسوي ليکوال رابله (۱۴۱۴-۱۵۵۲م)، ايتالوي ليکوال بوکاچو (۱۳۱۳ - ۱۳۷۵م) نومونه او بيا وروسته په اوولسمه پيړۍ کې د فرانسوي کلاسيزم تيوريسن بوالو د «شاعرانه هنر» په نوم يو ارزښتناک کتاب وليکه چې د خپل عصر د شاعرانو او ليکوالو له پاره يې د لارښود حيثيت درلود، نومونه د بيلګې په توګه يادوو. همدارنګه په دې وروستيو دوه پيړيو کې په اروپا او نوره نړۍ کې د ادب پيژندنې په باب ډير کار شوی دی، چې د هغې تفصيل دلته نه ځائيږي.

اوس ادبي تیوري په نړیواله سطحه د یو علم په توګه منل شوی او د نړۍ په پر مختللو ژبو کې په دې اړوند ډیر زیات آثار موجود دي. ادبي تیوري د ادبیاتو د اساسي مضمون په توګه په پوهنتونونو کې هم تدریس کیږي، خو زموږ په هیواد کې سره له دې چې د پوهنتونونو د ادبیاتو د پوهنځیو په تعلیمي نصاب کې د یو مضمون په توګه شامل دی، هومره د ستاینې وړ کار نه دی شوی. البته ځینې درسي لکچر نوټونه او څو د ګوتو په شمیر آثار په پښتو او دري ژبو کې لیکل شوي او چاپ شوي، خو د مضمون اهمیت ته په پاملرنه دا کار کافي نشو ګڼلی.

## د ادبي تیورۍ د جوړښت ستونزه

سره له دې چې اوس ادبي تیوري په نړیواله سطحه په علمي او اکاډیمیکو مرکزونو کې د یو علم په توګه منل شوی او موږ یې د یوې داسې ادبي پوهنې په توګه پیژنو چې د ادبیاتو د انکشاف اصول، د ادب تولنیز ارزښتونه، د پراختیا او پرمختیا پړاوونه، د ودې او ایجاد عوامل، د ادبي آثارو د فورم او محتوی ځانګړنې او داسې نور مسایل تر څیړنې او مطالعې لاندې نیسي او د ادبي آثارو د تجزیې او څیړنې له پاره عمومي لارې او اصول ټاکي. بیا هم په عامه توګه د ادبي تیورۍ د جوړښت او نظریاتو د وضعه کولو په برخه کې څه ناڅه ستونزې لیدل کیږي. دا ستونزې له دې امله دي چې د هرې ژبې ادبیات په خاصو ټولنیزو زماني او مکاني شرایطو کې رامینځته کیږي، د لوړتیا او ځوړتیا پړاوونه وهي او په هر پړاو کې له داسې یو ځانګړي حالت سره

مخامخ کیږي چې بیانه تکراریږي، نو که څوک د یوې ژبې د ادبیاتو تیوري، چې د ځانګړو شرایطو تر اغیزو لاندې په یوه خاصه ادبي دوره کې وضع شوي وي، د بلې ژبې پر ادبیاتو کټ مټ تطبیق کول غواړي، دا یونه کیدونکی کار دی. د بیلګې په توګه: که موږ د یونان، روم او مصر د لرغونو دورو ادبیات د پښتو یا دري ژبو د کلاسیکې دورې له ادبیاتو سره پرتله کوو او د یوې تیورۍ له مخې پکې د ودې او انکشاف ګډ اصول او قوانین لټوو، نو مطلوبه نتیجه ور څخه نشو تر لاسه کولی. لازمه ده چې د هرې ژبې ادبیات د خپلې تیورۍ په رڼا کې مطالعه او وڅیړل شي. ان تر دې ځینې ادبپوهان وایي چې د یوې ژبې د ادب د ودې او پرمختیا هر پړاو باید ځانته خپله ادبي تیوري ولري. خو یو شمیر ادبي څیړونکی بیا په دې عقیده دي چې کله چې موږ د یوې ژبې د هرې ادبي دورې لپاره ادبي تیوري جوړوو، په دې صورت کې د ادب په تیوري نه، بلکه د ادب د تاریخ په مطالعه بوخت یو.

د پایلې (نتیجې) په توګه ویلای شو: سره له دې چې په عام ډول په هنر او په ځانګړې توګه په ادب کې یو شمیر داسې ګډ خصوصیات شته چې د نړۍ د ټولو ژبو په ادب کې په لږ یا ډیر ورته والي (شباهت) سره لیدل کیږي، چې موږ هغه د ادب عام قوانین نومولی شو. بیا هم د هرې ژبې ادب باید خپله تیوري ولري چې د هغې په رڼا کې ادب څیړونکي د ادب د ودې او انکشاف عام قوانین، د ادبي آثارو ټولنیز ماهیت او نورې ځانګړني وڅیړي.




# دویم: ادبي تاریخ

ادبي تاریخ یا د ادبیاتو تاریخ د ادبپوهنې بله مهمه ستره او اساسي څانگه ده، موږ په دې هکله لنډه او ځغلنده څېړنه د څو عمومي پېژندنو (تعریفونو) په راوړلو سره پیل کوو:

**پېژندنه:** د ادبیاتو تاریخ هغه پوهنه ده چې د یوې ژبې د ادبیاتو د پیدا ینبت او ودې جریان له تاریخي شرایطو سره د ارتباط په ترڅ کې څېړي.

یا په بله وینا: ادب تاریخ د یوې ژبې د ادبیاتو د ودې او انکشاف جریان مطالعه کوي او په دغه لړکې د بیلا بیلو ادبي آثارو ځای او ارزښت په گوته کوي.

په یوه بله پېژندنه کې لولو: د ادبیاتو تاریخ ډیر عام مفهوم لري او په عامه معنا د یو ملت د علمي، ادبي او فکري ترقۍ یا تنزل (لوړتیا او ځوړتیا) د حالاتو بیان ته د ادب تاریخ ویل کیږي. مگر په خاصه او ځانگړې معنا د شاعرانو او لیکوالو د کتابونو او آثارو د حالاتو او د ژبې د ادبي دورو بیان ته د ادب تاریخ ویل کیږي.

که د ادب تاریخ پورتنۍ درې واړه پېژندنې په غور سره ولولو ډیر شریک ټکي پکې لیدل کیږي، نو له دې ټولو څخه مشترک ټکي د ادبیاتو د تاریخ د پېژندنې د مجموعي نچوړ په توگه داسې وړاندې کوو:

د ادبیاتو تاریخ هغه پوهنه ده چې د یوې ژبې د علمي، ادبي لوړتیا او ځوړتیا (وده، انکشاف او تنزل) د تاریخ د بیلا بیلو پیړیو په پوړیو کې څېړي

او د ټولنيزو چاپيريالي شرايطو او تاريخي حالاتو په رڼا کې د ادبي ودې او تنزل د پيښو اصلي عوامل په ګوته کوي.

## د ادبي تاريخ او ادبي تذکرې توپيرونه

د ادبي تاريخ بيلا بيلې پيژندنې مو د مخه ولوستلې، د دې له پاره چې له ادبي تذکرې سره يې په توپير پوه شو لازمه ده چې لومړی ادبي تذکره په ځانګړې توګه درو پيژنو:

**پيژندنه:** تذکره يوه عربي کلمه ده چې په ځانګړي بڼه د يرې معنا وې لري، په ادبي او فرهنګي اصطلاح کې ادبي تذکره هغه اثر ته ويل کيږي چې د شاعرانو احوال يا ژوند پيښې او آثار پکې معرفي شوي وي او ضمناً پکې د شاعر د کلام بيلګې هم خوندي وې.

سر محقق زلمي هيواد مل په خپله يوه ليکنه کې د تذکره ليکنې عمومي اصول داسې ښودلي دي:

١ - د شاعر يا ليکوال بشپړ احوال او ژوند پيښې.

٢ - د شاعر او ليکوال آثار او ايجادات.

٣ - د شاعر او ليکوال د آثار و شکلي او موضوعي ځانګړتيا وو څرګندونه.

٤ - د شاعرانو او ليکوالو د احوالو او آثارو د معرفي تر څنګ د هغوی د اشعارو او نثري ليکنو بيلګې راوړل.

د پورته څرګندونو له مخې ويلای شو چې: "ادبي تذکره" او "ادبي تاريخ" د تأليف دوه بيلا بيل ډولونه دي چې يو له بله سره ارتباط لري. په ځانګړې توګه ادبي تاريخ په زياتو مواردو کې په ادبي تذکره تکيه

کوي، مگر ادبي تاریخ ادبي تذکره نه ده او ادبي تذکره هم له اوسنیو معیارونو سره سم ادبي تاریخ نه دی.

کیدای شي په یوې ادبي تذکره کې د یوې ژبې د بیلابیلو دورو او بیلابیلو جغرافیوي سیمو او حتی فرهنگي حوزو کې اوسیدلو ناظمانو، شاعرانو او لیکوالو احوال او آثار مطالعه شي او دا معرفي یې کیدای شي په الفبایي سیستم یا د سیمو په لحاظ او یا هم د تاریخي وړاندې وروسته والی له مخې په کرونو لوژیک سیستم ترتیب او تنظیم شوې وي. حال دا چې په ادبي تاریخ کې د اروش نه تعقیبیږي. بلکې په ادبي تاریخ کې د هرې دورې آثار، لیکوال او شاعران په خپله دوره کې د ادبي پیښو او جریاناتو د انکشاف پر اساس څیړل کیږي. بر سیره پردې د ادبي تاریخ په اړه دا ټکي هم باید په پام کې ونیسو چې په ادبي تاریخ کې د یوې ژبې د تمام قلمرو آثار نشي مطالعه کیدی، ځکه چې په بیلابیلو جغرافیوي سیمو کې تر مختلفو سیاسي، اقتصادي او ټولنیزو سیستمونو او نظامونو لاندې واقع دي. هلته د ادبیاتو د ایجاد او ودې شرایط هم توپیر سره لري او موږ نشو کولی چې د یوې ژبې ټول آثار، چې په بیلا بیلو هیوادونو کې یې تر سیاسي، اجتماعي شرایطو لاندې وده موندلې وي، په یوه ادبي تاریخ کې سره مطالعه کړو، خو په ادبي تذکره کې دا کار ممکن دي.

د بیلگې په توگه موږ کولی شو چې د پښتو په ادبي تذکره کې د پیښور او یا بلوچستان د شاوخوا سیمو پښتانه لیکوال او شاعران معرفي کړو، او یا د دري ژبې په تذکره کې د ایران او یا تاجکستان فارسي ژبي ادیبان او د هغوی آثار را واحلو، خو د ادبیاتو په تاریخ کې دا کار نشو کولی.

د ادبي تذکرې او ادبي تاریخ بل ستر توپیر دا دی چې کیدای شي په

ادبي تـذکـره کې د ادبي او هنـري آثـارو د ليکوالو او شاعرانو د پيژندګلوۍ تـر څنګـه ځينې ناظمـان هم معـرفي شي، مګر په ادبي تاريخ کې د ناظمانو او هـر ډول ليکـوالو آثار د مطالعې ځای نه لري، بلکې پر هغو آثارو او د اديبانو او ليکوالو پر ژوند پيښو تحليلي بحثونه کيږي چې لوړ هنري او ادبي ارزښت ولري.

د ادبي تذکرې او ادبي تاريخ تر مينځ دغسې لوی او واړه نور توپيرونه هم شته چې مونږ د بحث د اوږديدو له ويرې د هغو له را وړلو نه ډډه کوو او د پايلې په توګه وايو چې: دواړه د تأليف بيل بيل ډولونه دي. دلته د لوستونکو د معلوماتو له پاره د پښتو او دري ژبو د يو شمير ادبي تذکرو او ادبي تاريخونو نومونه اخلو:

**الف - ادبي تذکرې:**

۱- پټه خزانه (محمد هوتک) ۲- شعرالعجم (شبلي نعماني) ۳- د پښتو اوسنی ليکوال (درې ټوکه- عبدالروف بينوا) ٤- معاصرين سخنور (مولانا خسته) ٥- پښتانه شعراء (پنځه ټوکه- بيلا بيل ليکوال) ٦- پرطاؤس (مولانا حنيف بلخی) ۷- دا ليکوال او داخيرې (افضل ټکور).

**ب - ادبي تاريخونه:**

۱- د پښتو ادبياتو تاريخ (دوه ټوکه- پوهاند حبيبې) ۲- تاريخ ادبيات افغانستان (حيدر ژوبل) ۳- پښتو ادبياتو تاريخ لرغونې او منځنۍ دوره (سر محقق هيواد مل) ٤- تاريخ ادبيات افغانستان (کهزاد، علی احمد نعيمی، غبار او نور) ٥- روهي ادب (نواز طاهر) ٦- تاريخ ادبيات ايران (شپږ ټوکه - ډاکتر ذبيح الله صفا) د پښتو ادبياتو تاريخ معاصره دوره (کانديداکاډ يمسين محمد صديق روهي) او داسې نور.

## د ادبي تاریخ لیکنې اصول او د دورو د ویش مسئله

لکه چې څرګنده ده د ادبیاتو د تاریخ ډیره ستره او مهمه بنسټیزه دنده د تاریخ په اوږدو کې د یوې ژبې د ادبیاتو مطالعه او په بیلا بیلو ادبي دورو د هغو ویشنه ده، لازمه ده چې لومړی ادبي دوره وپیژندل شي او په دې پوه شو چې څرنګه دغه ادبي دورې مشخصې او یوه له بلې بیلیږي؟

د ادب تاریخ په لیکنه کې د ادبي دورو تشخیص او ټاکل له ستونزو ډک کار دی او د ادبي مؤرخ زیاته پاملرنه او کړ او غواړي. د ادبي دورو د ویش له پاره کوم ټاکلی معیار نشته او د بیلا بیلو ژبو د ادبي تاریخ لیکونکو په دغه برخه کې ځانګړي معیارونه کارولي دي.

د ادبي دورو د ویش په برخه کې تر ډیره دیو ټاکلي معیار د نشتوالي یوستر علت دادی چې ځینې ادبي جریانونه په آسانۍ سره خپل ځای نوي ادبي جریان ته نه خوشې کوي. کله کله د یو ادبي جریان ریښې ډیرې پخوانۍ وي، په تدریجي توګه وده مومي. د هغه د انکشاف په دوران کې ښایي یو بل قوي ادبي جریان رامینځته شي او یا له مینځه ولاړ شي. لنډه دا چې ادبي مکتبونه، ادبي تمایلات اکثره داسې نه دي چې له کوم سیاسي رژیم سره را منځته شي او د هغه له سقوط سره سم بې له ځنډه محوه شي. کله کله شرایط بدل شوي وي، خو ادبي عنعنه لا پر ځای پاتې وي.

په لویدیزه نړۍ، په ځانګړې توګه د انګریزي ژبې په ادبي تاریخونو کې د ادبي دورې ټاکلو یو معیار دادی چې هره دوره یا عصر د یو نامتو استازي لیکوال او ادیب په نامه یادیږي، لکه د چاسر عصر، د سپنسر عصر او داسې نور او یا ادبي دورې د پیړیو په نوم نومول کیږي، لکه د پنځلسمې پیړۍ

ادبيات، د اتلسمې پيړۍ ادبيات او داسې نور. ځينې وخت يې بيا د مسلطو فلسفي نظريو او د ادبي مکتبونه په نوم نوموي، لکه د کلاسيزم عصر، د رومانتسيزم عصر او نور. زموږ په ادبياتو کې د ادبي دورو په ويش او ټاکنه کې هم دغه ستونزه موجوده ده، په پښتو او دري ژبو چې د ادبياتو د تاريخ په نومونو کوم آثار ليکل شوي دي، ليکوالانو يې پرته له دې چې په ادب کې د فورم او محتوا د کمي او کيفي بدلون، د ادب د ودې او انکشاف جريان او د هغه عوامل په پام کې ونيسي د خپلې خوښې او ذوق سره سم يې د ادبي دورو ويش په عنعنوي توګه کړي دی: چا پر هيواد باندې د بهرنيو ير غلګرو د تاړاکونو او چا د کورنيو شخړو او اشخاصو تر مينځ د سياسي واک دليږد يدو او ځينو بيا د سياسي نظامونو د بدلون او او ښتون او ځينو نورو د ادبي جريانونو او مکتبونو او د هغه په رأس کې د نوميا ليو اديبانو په نوم ادبي دورې ويشلي او ټاکلي دي.

بايد ووايو چې دغه پورتنی ويشونه او د ادبي دورو د ټاکلو او بيلولو لارې هيڅکله هم د يوې ژبې د ادبياتو دودې او انکشاف د تاريخی سير له تشريح او روښانولو سره مرسته نشي کولی.

لکه چې د مخه مو يادونه وکړه د ادبي دورو ويش او سره بيلونه يوه کړ کيچنه مسئله ده، په دې برخه کې ډير غور او دقت پکار دی، نو:

*د ادب تاريخ ليکوال ته لازم دی چې هغه بايد تر هر څه لومړی په ادبي تيوري و پوهيږي چې د هغې له مخې د خپلې ژبې د ادبي آثارو مطالعه وکړي، ځکه چې د ادب تاريخ په واقعيت کې د ادبي تيورۍ د تطبيق ډګر دی.

*د ادبي تاريخ ليکوال بايد د هرې دورې د خلکو له ټولنيزو، ديني، مذهبي او سياسي عقايدو، تاريخي ټولنيزو حالاتو او پيښو د ادبي غور ځنګونو او تحريکونو يا ادبي مکتبونو او جريانونو، په هکله هر اړخيز

معلومات ولري، تر څو د ادبي تاريخ دورې په سمه او مطلوبه توګه وټاکلې يا وويشلای شي.

*د ادب تاريخ په هره دوره کې بايد د هغې د دورې د نومياليو او نماينده ادبي څېرو د ژوند پېښو، د ټولينزو حالاتو، شرايطو او مسايلو په وړاندې د دغو استازيو اديبانو دريځ (موقف) خلکو او ټولنې ته د دغو اديبانو د آثارو او افکارو پيغام او په دې ترڅ کې د ځانګړو اصولو او مشخصاتو له مخې د غوره ادبي آثارو په هکله قضاوت، دراميڼځته شويو ادبي غورځنګونو او جريانونو مناسبه پېژندګلوي او د دغو ادبي مکتبونو او سبکونو دراميڼځته کېدو، ودې انکشاف، اغېزو او د له مينځه تللو دعواملو د ښودنې په هکله يوه هر اړخيزه او جامع سپړنه او څېړنه لازمي ده.

*يوازې د يو يا بل شاعر او ليکوال د ژوند پېښې، د نظم او نثر د بېلګو را اخيستل په هيڅ صورت د ادبياتو تاريخ نه شو بللی، بلکه د يوې ادبي تذکرې نوم ورکولای شو، چې البته د ادبياتو د تاريخ د ليکنې په وخت کې ور څخه پخپل ځای ډېره استفاده کېدای شي.

*ادبي تاريخ برسېره پردې چې مونږ ته په هره ادبي دوره کې د هغې دورې استازي او مشهور اديبان او د هغوی ارزښتناک ادبي آثار را پېژني، د همغه عصر او دورې د ټولنيزو عقيدوي، سياسي، علمي، فرهنګي او حالاتو يوه نقشه هم زمونږ مخې ته ږدي چې اديب پکې روزل شوی، ادب پکې راميڼځته شوی، د بېلا بېلو عواملو له مخې يې د لوړتيا او ځوړتيا پړاوونه وهلي دي. څومره چې په ادبي تاريخ کې د هرې دورې او عصر روحيه او د پېښو انځور هر اړخيز او جامع وي، په همغه پيمانه يې د ليکوال او اثر د معقوليت او مقبوليت چانس زيات وي.

# دریم : ادبي کره کتنه «نقد»

**لغوي او اصطلاحي پيژندنه:**

ادبي کره کتنه «نقد» چې د ادب پوهنې بله ستره او مهمه بنسټيزه څانګه ده، لغوي معنا يې فرهنګونو: وينا پيژندنه، د خبرو سنجونه، رښتينی قضاوت او د ادبي آثارو ارزښت معلومونه راخيستي ده. په عربو کې پخوا د نقاد اصطلاح په عامه توګه د اصلي او کوټه (ناچلو) ديناورونو او درهمونو بيلونکي او د ښه او بد توپيرونکي په معنا استعماليدله، خو اوس په ادب کې د وينا د ښو او بدو اړخونو (ښيګڼو او عيبونو) معلومونکي ته کره کتونکی (نقاد) وايي.

په بله وينا: تنقيد (کره کتنه) په لغت کې محاکمه کولو ته وايي او په ادبي اصطلاح نقاد (کره کتونکی) هغه چا ته ويل کيږي چې د نقد په وسيله د ادبي آثارو او د هغو د ښه والي يا بدوالي په هکله لوستونکي ته يوه پريکړه او فيصله صادر وي.

ادبي کره کتونکی د يو ادبي اثر د ژورې کتنې او مطالعې په لړ کې هغه تشريح او توضيح کوي او دغسې د اثر د محتوا په اصلي روح، د ليکوال په پيغام، او د ادبي اثر د رامينځته کولو په غرض لوستونکی پوهوي او د يو لړ ټاکلو اصولو په رڼا کې يې ادبي ښکلا، ښيګڼې، بد ګڼې (عيبونه)، نيمګړتياوې او کمزور تيا وې بيانوي. يا په بله ژبه لوستونکی ته د اثر هر اړخ او د ليکوال فکر او غرض په ښه اغيزمنه توګه ورښيي.

# د ادبي کره کتنې موخه او غرض

ادبي کره کتنه په عام ډول د دوو سترو هدفونو او موخو له پاره کيږي:
لومړی دا چې ادب تشريح کړي او دويم ددې له پاره چې د ادبي اثر د ښواو ناوړه، کره او ناکره، پوره او نيمګړو برخو په هکله قضاوت او حکم وکړي. کله کله ادبپوهانو د اخبره هم را مخې ته کړې ده چې د کره کتونکي يوازينۍ دنده د ادبي اثر تشريح ده، فيصله بايد پخپله لوستونکی وکړي يا دې هغه لوستونکي ته پريږدي.
ښه او پياوړی کره کتونکی تل د يو ادبي اثر تشريح، توضيح او تفسير د خپل ذوق او شعور په مرسته کوي، نو همدې ټکي ته په پاملرنه ويلای شو چې کره کتنه يو ډير له ستونزو ډک کار دی. د کره کتنې په پروسه کې د کره کتونکي دنده داده چې د ادبي اثر روح ته ورننوزي، ښيګڼې او بدګڼې (ښې او بدې خواوې) يې په ګوته کړي، د اديب په افکارو او ادبي تجربو باندې فکر وکړي، د اثر اصلي مفهوم تشريح، ښکلاتيز او اخلاقي اړخونه يې وښيي، په تياره ګوټونو يې رڼا واچوي او د بيلا بيلو اړخونو خپل منځني اړيکې يې څرګندې کړي. د ادبي اثر د تشريح پر وخت د اثر د پنځوونکي (رامينځته کوونکي) مطالعه او تشريح هم ضروري ده او دغه ډول د ليکوال مقابله او موزانه د نورو هم عصرو ليکوالو سره او ترڅنګ يې پر ادبي اثر د خپل عصر تاريخي او ټولنيزې اغيزې هم بايد څرګندې شي.
د ادبي کره کتنې د ګټو په اړه دا ويلی شو چې تر ټولو ستره ګټه يې داده

چې د وخت د ضایع کېدو مخه نیسي او هغه ادبي آثار چې موږ یې په ورځو ورځو نشو لوستلی، د کره کتنې په څو مخونو کې د ادبي اثر د محتوا په روح او د لیکوال په موخه پوهیدای شو. د بیلګې په توګه: هر کال زیات شمیر ادبي کتابونه چاپ او خپرېږي چې د ټولو تر لاسه کول او لوستل زیات وخت او مالي لګښت غواړي. موږ د کره کتنو د لوستلو په مرسته کولای شو د دغه ټولو آثارو ارزښت او هدف څانته معلوم کړو، خو د کره کتنې دا ګټه هغه وخت اغیزمنه تمامیدای شي چې کره کتونکی ذهین او په خپل مسلک کې د لوړې پوهې او استعداد خاوندوي. په دغه صورت کې هغه کولی شي د ادبي اثر روح تشریح او پر تیاره ګوټونو یې لازمه رڼا واچوي.

## د ادبي کره کتنې ګټې

د ادبي کره کتنې ګټې په څانګړې توګه په دریوو برخو کې مشخصولی شو:

۱-د آثارو لوستونکو ته.

۲- د آثارو لیکوالو ته.

۳- علم، هنر او ادب ته .

*لوستونکو ته یې لویه ګټه داده چې د وخت د ضایع کیدو مخه یې نیسي او هغه اثر چې په څو ورځو کې یې نشي لوستلی د کره کتنې د لوستنې له لارې یې ډیر ژر د محتوا په روح او د لیکوال په موخه او غرض پوهیدلی شي. بل دا چې د اثر په اړه د ګټور و معلوماتو په ورکولو او یا د تیاره ګوټونو د توضیح او تشریح له لارې د لوستونکي معلوماتي پانګه زیاتوي او د پوهې

سطحه یې لوړوي. برسېره پردې د اثر ادبي ارزښتونه درک او له ښو او بدو اړخونو یې خبرېږي.

*د اثر لیکوال ته د کره کتنې گټه داده چې خپلو خامیو او کمزوریو ته متوجه او په راتلونکې کې د خپلې لیکنې د اصلاح او سمون په هڅه او فکر کې کېږي.

*پوهې، هنر او ادب ته د کره کتنې گټه داده چې پکې اصلاح او سمون راولي، د کمال او بشپړتیا پړاو ته یې رسوي. ځکه کره کتنه د ادب او پوهې د پرمختگ ډېر مهم عامل دی. که ادبي کره کتنه نه وي د ادبي آثارو ارزښت او اهمیت به څنگه وټاکو؟ ادبي پوړ او درجه به یې څنگه معلومه شي؟ او ادبي چارې به څنگه اصلاح، سمون او بشپړتیا ته ورسېږي؟ کله چې لیکوال په دې پوه شي چې آثار یې د کره کتونکي له خوا ارزیابي کېږي، ښه والی او بدوالی یې معلومېږي، نو هغه به تر خپرولو مخکې د خپل اثر د بشپړتیا او ښه والي له پاره تر خپلې وسې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې وکړي او گټه به یې پخپله لیکوال او هم ادب ته ورسېږي.

## د کره کتنې ضرورت، اهمیت او دنده

په ادب کې د کره کتنې د موجودیت له گټې او اغیز منتیا سره سره په بیلا بېلو وختونو کې ځینو خلکو د کره کتنې (نقد) او کره کتونکي (نقاد) پر دنده اعتراض لرلې او نقدیې د ادب پېژندنې یوه داسې وسیله گڼلې چې له گټې نه یې زیان ډېر وي.

په دې لړ کې ځینو ویلي دي چې: نقاد یا کره کتونکی «تنگ نظره»

وي او کره کتنه تعميري او رغنده عمل نه، بلکې يو تخريبي عمل دی.

ځينې وايي چې نقد د ادبي آثارو د رامينځته کيدو او تخليق په مخکې لوی خنډ ګرځي او ډير اديبان له دې ويرې چې نقد او کره کتنه په پرې وشي ادبي اثر نه رامينځ ته کوي.

يو شمير بيا په دې باور دي چې نقاد «کرکجن» او «کينه ګر» وي، د خواخوږۍ پر ځای پکې د نفرت او بدبينۍ حس او جذبه زياته او پياوړې وي.

څوک بيا دا هم وايي چې نقادان په لوی لاس اصلي مطلب تېرويېروي او لوستونکی پرته له دې چې اصلي اثر ولولي په کره کتونکي پسې ځي، ډير وخت داسې هم کيږي چې اصلي مطلب پاتې شي او نقاد لوستونکی پر نورو لارو سر کړي.

له دې پورته نيوکوا و اعتراضونو سره سره «کره کتنه» پخپله ځای ځانګړی ارزښت او اهميت لري، هميشه ورته اړتيا ده، که په سمه او رغنده توګه تر سره شي ډيره زياته ګټه لري او دا ځکه چې:

ادبي نقد په غور سره يوه ژوره کتنه ده چې حقايق را بر سيره کوي، د ادب له پاره يې اړتيا او ګټه داده چې لوستونکي ته د ادبي اثر روح تشريح او توضيح کوي، ښه او بد اړخونه يې په ګوته کوي، خامی او خوبی يې بيانوي او حقايق د لوستونکي مخې ته ږدي.

د ادب له پاره د کره کتنې ضرورت او اړتيا ځکه هر وخت ډيره احساسيږي چې که کره کتنه نه وي موږ به د ادبي آثارو ارزښت څنګه وټاکو؟ نه به اديب پخپله ښه او بده پوه شي او نه به لوستونکی د اديب د اثر له پيغام او غرض نه په سمه توګه خبر شي. د نقد او کره کتنې بله اړتيا او ګټه داده چې

لوستونکی د نقد په وسیله ډیر څه تر لاسه کولی شي. د بېلګې په توګه: موږ نشو کولی د یو شاعر یا لیکوال ټول ادبي آثار ولولو او په مجموعي توګه د هغه د آثارو پیغامونه ځانته معلوم کړو؛ ځکه دا کار ډیر وخت او زیاتې مطالعې ته اړتیا لري، خو که د همدغه مطلوب شاعر او یا لیکوال د ژوند او فن په هکله تر سره شوې ادبي کره کتنه ولولو په لږ وخت کې د هغه په اړوند په ډیر څه پوهیدلی شو.

## د ادبي کره کتنې معیارونه

ادبي کره کتنه خپل ځانګړي معیا رونه لري چې د هغو له مخې تر سره کیږي.

کره کتونکی د دغو معیارونو له مخې یا هغو ته په پاملرنه په یو ادبي اثر کې د دې لاندې پوښتنو ځوابونه ګوري:

هنري یا ادبي اثر کومې ځانګړنې لري؟ د ادبي اثر مضمون مهم دی او که یې شکل؟

که شکل مهم دی نو خصوصیات یې څه دي؟ که مضمون ته ارزښت ورکول کیږي په هغو کې کوم اړخ تر نورو د مخه دی: ښکلاتیز، اخلاقي، عقیدوي، سیاسي او که بل څه؟ په ادبي اثر کې څومره واقعیت او څومره تخیل شته او افاده یې په کوم سبک شوې ده؟ د ادبي اثر هدف او غرض څه دی؟ تر لاس لاندې متن ثقه دی؟ د ادبي اثر ژبه صریحه او خوږه ده؟ د ادبي اثر د تخلیق چاپیریال څه ډول دی؟ له عصري معیار سره سم یې ښکلاوې او عیبونه یې کوم دي؟ اثر ابتکاري دی که مبتذل او تکراري؟ د لیکوال دریځ او په اثر کې

کلتوري انعکاس څنګه دی؟ اثر په کوم ادبي جريان پورې اړه لري؟ د ليکوال هدف او ارزښتونه څه دي؟ آيا ادبي عنعنې پکې مرعات شوې دي؟ او داسې نورې پوښتنې او غوښتنې.

## د کره کتونکي صفتونه او ځانګړنې

لکه څنګه چې کره کتنه خپل ټاکلي اصول او معيارونه لري، د غسې کره کتونکی هم خپل مواصفات او ځانګړنې لري، چې تر ټولو مهمې يې دادي:

۱ - کره کتونکی بايد د پوهې او بصيرت خاوند وي.

۲ - هيڅ ډول تعصب ونه لري.

۳ -د عدل او انصاف خاوند وي.

که په يو کره کتونکي کې دغه پورتنۍ درې ځانګړنې موجودې وي کره کتنه يې بې له شکه ګټوره او ډيره ارزښتناکه ده.

- د کره کتونکي له پاره د علم او پوهې اړتيا ځکه ډيره احساسيږي چې که هغه تر هر څه لومړی د خپلې دندې او مسلک (کره کتنې) په اړوند پوهه ونه لري، له اصولو او معيارونو يې خبر نه وي، په ادبياتو او په هغو پورې مربوطو فنونو باندې ونه پوهيږي، نقد به يې نيمګړی وي او کوم علمي ادبي ارزښت به ونه لري، بلکې يو شخصي او عندي احساس او نظر ګڼل کيدای شي.

- کره کتونکی بايد هيڅکله د تعصب، کينې، بدبينۍ او کرکې له مخې د يو ادبي اثر نقد ته اقدام ونه کړي. داسې نه چې د نقد ټول اصول او معيارونه هير کړي او د خپل شخصي غرض له مخې پر يوه اثر د «ناوړه» حکم وکړي، بلکې هغه بايد د اثر ټولې خواوې هغسې ارزيابي کړي، څنګه چې يې

حق دي. د کره کتنې پر وخت باید خپل شخصي ذوق، غوښتنې او سیاسي عقاید یوې خواته کیږدي او بیا دې په نقد او کره کتنه لاس پورې کړي.

- کره کتونکی باید د کره کتنې پر وخت له پوره عدل او انصاف څخه کار واخلي، هسې نه چې د خوشبینۍ او بیلابیلو اړیکو له مخې له ادب او لوستونکو سره، او یا د بدبینۍ او شخصي غرض پر بنسټ له ادیب سره زیاتی وکړي. کره کتونکی دې هیڅکله د عدل او انصاف تله له لاسه نه لرې کوي.

که په یو کره کتونکي کې دغه پورتني او داسې نور لازم مواصفات وي، د کره کتنې د علمي اصولو له مخې یې خپله دنده په سمه توګه تر سره کړې وي، په واقعیت کې له «ادیب» او لوستونکو دواړو سره مرسته کوي:

له ادیب سره یې لویه مرسته داده چې هغه خپلو نیمګړتیاوو او خامیو ته متوجه کوي، تر څو هغه خپلې دغه نیمګړتیاوې یا کمۍ او خامۍ سمې او د خپل فن د نورې لوړتیا او پیاوړتیا هڅې وکړي. کره کتونکی له لوستونکو سره دا مرسته کوي چې د اثر د اصلي پیغام او محتوا تر څنګ ورته د هغې خوبۍ او خامۍ هم په ګوته کوي.

نو د پایلې په توګه وایو چې: ادب د نورو ټولنیزو علومو او فنونو په څیر د ښه والي او غوره والي له پاره ځانګړي معیارونه لري او که څوک پر ته له دې چې دغه منلي معیارونه په پام کې ونیسي، هر څه ټولنې ته د «ادب» په نوم وړاندې کوي، دا کار په مجموع کې له ادب سره تیری او زیاتی دی. دا د ادبي کره کتونکي دنده ده چې د اثر کمۍ او خوبۍ لوستونکو ته وروښیي او کره او ناکره آثار سره بېل کړي.

# د کره کتنې وړ ادبي آثار

زموږ په ټولنه کې معمولاً پر دوه ډوله ادبي آثارو کره کتنه کیږي او له دې لارې یې ارزښت معلومیږي:

۱ - غوره لرغوني منظوم او منثور آثار ، تر څو چې د کره کتنې په نتیجه کې یې ادبي ارزښتونه وپیژندل شي او ستونزې یې د څیړنې په نتیجه کې څرګندې کړای شي.

۲ - د معاصرینو منظوم او منثور آثار چې په هغو کې یې د لرغونو متونو په هکله څیړنه او تتبع کړې وي او که د معاصرو مسایلو په اړه تخلیقي یا څیړنیزې لیکنې وي. چې د لیکوالۍ د لارو چارو ، د ادبي فنونو او نورو ابتکاري مضامینو دشته والي او داسې نورو لفظي او معنوي ځانګړنو له مخې ددې وړوي چې کره کتنه پرې وشي او د هغې نتیجه د لوستونکو له پاره ګټوره او د استفادې وړ وګرځي.

د لومړي ډول (لرغونو) آثارو په برخه کې کره کتونکی څیړنیز کارونه د ادبي معیارونو ، قواعدو او بیلا بیلو موازینو په هینداره کې ګوري او د لوستونکو له پاره ډیره ګټه لري. په دویم ډول آثارو کې چې شعرونه، کیسې او بیلا بیل تخلیقي او ادبي څیړنیزې لیکنې پکې راځي، کره کتونکی دا ګوري چې:

- د لیکوال یا شاعر نیت د دغه اثر په رامنځته کولو کې [illegible]

- د وینا او لیکنې د معنا ژوروالی او ربښتینوالی څه او څومره دی؟

- ادبي فنون (استعارې، تشبیهات، کنایې، لفظي او معنوي صنایع)

يې څه ډول کارولي؟ او بالاخره د اثر روښانه او تياره اړخونه، يا بشپړتيا او نيمګړتيا يې کومه ده؟

دغه ډول کره کتنه او څېړنه په عامه توګه لوستونکو او په ځانګړې توګه د شاعرانو او ليکوالانو له پاره ډېره ګټوره ده.

## د کره کتنې لوستونکي ته لارښوونې او پاملرنې

د يو ادبي اثر په اړ تر سره شوې کره کتنې د لوستلو پر وخت بايد لوستونکی دې لاندې ټکو ته کلکه پاملرنه وکړي:

۱ - د کره کتنې لوستونکی دې هڅه وکړي چې د کره کتونکي په روحي او فکري څرنګوالي پوه شي، او دا دې هم ځانته معلومه کړي چې کره کتونکي علمي امانتداري او د اثر ليکوال سره همدردي لري که نه؟

۲ - په دويم قدم کې دې د کره کتونکي اهليت، علميت، وړتيا او استعداد په پام کې ونيسي او په دې ځان پوه کړي چې د کره کتونکي د مطالعې ساحه پراخه ده او که لنډه ـ تنګه؟ د کره کتنې په اصولو پوهېږي او که نه؟

۳- ودې ګوري چې د اثر له ليکوال سره يې د تعصب يا پلوی توب (طرفدارۍ) له مخې چارچلند کړی او که له پوره امانتدارۍ او بې طرفۍ څخه يې کار اخيستی دی؟

٤ - دادې ځانته معلومه کړي چې کره کتونکي د ادبي اثر په لوستلو کي له کوم معيار څخه کار اخيستی دی؟

٥ - په دې هم ځان وپوهوي چې کره کتونکي خو په اثر کې په لوی لاس د نيمګړتياوو او کمزورتياوو د پيدا کولو هڅه نه ده کړې؟

دلته ددې خبرې یادونه ضروري ده چې هغه کره کتنه هم د منلو وړ نه ده چې کره کتونکی یوازې د اثر خوبۍ او ښېګڼې بیان کړي او د کمزوریو او نیمګړتیاوو په اړه یې څه ونه وایي.

مطلب دا چې کره کتونکی باید دومره د نرم زړه خاوند نه وي چې د اثر خامۍ له یوې مخې له پامه وغورځوي او نه دومره سخت زړی وي چې په اثر کې په لوی لاس غلطۍ پیدا کړي او په ښېګڼو یې سترګې پټې کړي. پکار ده چې د اثر ښېګڼې په ګوته کړي او په نرمه لهجه خامۍ وښيي او د اصلاح لار ښوونه یې هم وکړي.

## د کره کتنې ډولونه

ادب پوهان په عام مفهوم په لومړي سر کې ادبي کره کتنه پر دوو ډولونو ویشي:

یوې ته یې «نظري کره کتنه» او بلې ته «عملي کره کتنه» وایي.

په لومړي ډول کره کتنه کې یو لړ اصول او روشونه دي چې د هغو په مرسته له هنر او ادب سره د اړوندو مسایلو او مبحثونو ارزیابي کیږي او په دوهم ډول کې د وضعه شویو اصولو په رڼا کې د ادبي آثارو ښېګڼې او بد ګڼې یا ښه او بد اړخونه ښودل کیږي.

نن سبا چې په نړۍ کې د پوهې او معلوماتو هرې څانګې ډېره پراختیا موندلې ده په دې لړ کې د ادبي کره کتنې بیلا بیل سبکونه، روشونه او مکتبونه رامینځته شوي چې موږ دلته د هغو له جملې څخه د ځینو ډېرو مهمو مشهورو په لنډه پېژندنه اکتفاء کوو:

## ۱ - تاریخي کره کتنه:

ددې کره کتنې منظم پیل د اوولسمې میلادي پیړۍ له پیل نه شوی او د فرانسوي ادبپوه «ایډمنډ شیر» او «نېلز» نومونه یې د بنسټ ایښودونکو په توګه د يادونې وړ دي.

په دې کره کتنه کې د یو اثر د نقد له پاره د تاریخي حالاتو او شرایطو او د ادیب شخصي ژوند او چاپیریال او د هغه وخت د سیاسي، ادبي او ټولنیزو پیښو عواملو څېړنه او کتنه ضروري ده. ددې کره کتنې پلویان د آثارو په ارزښت کې یوازې تاریخي پیښې کافي ګڼي او ټینګار پرې کوي.

## ۲ - تشریحي او توضیحي کره کتنه:

په اوولسمه پیړۍ کې ددې کره کتنې بنسټګر «ډرایډن» ګڼل شوی دی. په دې کره کتنه کې یوازې د یو ادبي اثر توضیح او تشریح کیږي او کره کتونکي دا هڅه کوي چې د لوستونکي د پوهیدنې له پاره د ادبي اثر هغه برخې چې پوره وضاحت او صراحت نه لري، په اشارو یا کنایو پکې مطالب بیان شوي وي، هم هغه توضیح کړي.

## ۳ - ښکلاییزه کره کتنه:

په معاصر مفهوم ددې کره کتنې لوی مبلغ او بنسټګر «اسکرډایلډ» ګڼل شوی دی. د نوموړي له نظره په کره کتنه کې دا مهمه وه کله چې پر کوم اثر کره کتنه کیږي تر هر څه لومړی باید دا وکتل شي چې د ښکلا مقصد پکې تر کومه حده او په کوم ډول تر سره شوی دی. ددغې کره کتنې د اصولو له مخې هر څومره چې په یو اثر کې ښکلاییز اړخ زیات او پیاوړی وي په همغه پیمانه اثر «ښه» او «غوره» او ادیب بریالی دی. په دې کره کتنه کې د آثارو ارزښت او اهمیت د ښکلا پیژندنې له مخې ټاکل کیږي.

## ٤- حکمي کره کتنه:

دا کره کتنه د یو لړ داسې اصولو او معیارونو له مخې کیږي چې د مخه وضع شوي. کره کتونکی د نقد پر وخت پخواني ټاکلي معیارونه مخې ته بږدي او د هغو په رڼا کې د ادبي اثر په هکله حتمي فیصله ورکوي. ادبپوهان په دې کره کتنه کې یوه لویه نیمګړتیا دا ګڼي چې د کره کتنې دا روش له هغو ادیبانو سره زیاتی دی چې په ادب کې په ارتقا او بدلون قایل دي. په لنډه وینا ویلی شو چې د کره کتنې دا لاره په ادب کې د نویو لارو چارو درا مینځته کیدلو په وړاندې لوی خنډ دی.

## ٥- نفسیاتي یا روحیاتي کره کتنه:

د ادبي کره کتنې دغه لاره ډېره لرغونتیا او سابقه نه لري او د نوي عصر زیږنده ده.

زیاتر پوهان ددې کره کتنې بنسټ د فرویډ نظریات ګڼي. په دې کره کتنه کې، کره کتونکي هڅه کوي چې په ادبي اثر کې د لیکوال تحت الشعور مطالعه کړي او هغه ټول روحي او نفسیاتي عوامل ځانته معلوم کړي چې د دغه ادبي اثر د را مینځته کیدو سبب ګرځیدلي وي. دا کره کتنه ډېره له ستونزو ډکه ده، زیاتې او ژورې مطالعې ته اړتیا لري. ددې کره کتنې په ترڅ کې کره کتونکی کله کله دومره ژور لاړشي چې د نور اثر مطالعه ورڅخه پاتې شي او د کره کتنې نتیجې نیمګړې پوړې دي.

---

**یادښت:** پردې پورتنیو ډولو برسیره د کره کتنې یو شمېر نورې لارې هم شته چې دلته یې یوازې نومونه اخلو: استقرایي کره کتنه، مقایسوي کره کتنه، سوسیالوجیکي کره کتنه، هیومانستی کره کتنه او نور.

## ماخذونه:

١ - شینواري دوست، د ادبي تیورۍ اساسونه، کابل، ١٣٦٥ هـ ش کال.

٢ - خسرو فرشیدورد (ډاکتر)، درباره ادبیات و نقد ادبي، جلد اول و دوم، تهران، ١٣٦٣ هـ ش کال.

٣ - روهي محمد صدیق (کاندید اکاډیمسین) د ادبي تاریخ میتودولوژي (د سیمینار د مقالو مجموعه)، کابل، پښتو ټولنه، ١٣٦٧ هـ ش.

٤ - هیواد مل، زلمی (سرمحقق) فرهنگ ادبیات پښتو، درېیم ټوک، ١٣٦٦ هـ ش.

٥ - هاشمي، سید محی الدین، د ادبي اصطلاحاتو تشریحي فرهنگ (ناچاپ).

٦ - حضرت امین، تنقیدی ادب، فصاحت او بلاغت، د ماسترۍ پروګرام لکچر نوټ، پېښور پوهنتون.

٧ - هیواد مل، زلمی، د کره کتنې ډولونه، د افغانستان د لیکوالو ټولنه، ١٣٧٠ هـ ش

٨ - هاشمي سید محی الدین، د لیکوالۍ فن، دانش کتابخانه، پېښور، ١٣٧٢ هـ ش.

٩ - نادر وزین پور (ډاکتر) برسمند سخن، تهران، ١٣٦٧ هـ ش، چاپ دوم.

١٠ - رښتین (پوهاند) د پښتو ادبیاتو تاریخ، پښتو ټولنه، ١٣٥٢ هـ ش.

١١ - هیوادمل، زلمی (سرمحقق) ادبي تذکره او ادبي تاریخ، پښتو مجله، پښتو اکېډیمي پېښور، ١٩٩٣ - ١٩٩٥ دمی او اګست ګڼه.

دریيم څپرکی:

# ادبي ډولونه او ژانرونه (ادبي انواع)

ادبي ډولونه یا ادبي انواع په واقعیت کې د ادبي تیورۍ او بحثونو ځانګړې څانګه ده چې اصلي موضوع یې د شکل او موضوع له مخې د ادبي آثارو طبقه بندي او ډلبندي ده. په ادبي انواعو کې تل دا پوښتنه مطرح ده چې آیا هر ادبي اثر د خپل ځان له پاره په ځانګړې او خپلواکه توګه وجود لري او که په یو نه یو ډول په نورو ادبي آثارو پورې اړوند دی.

یا په بله وینا: آیا ادبیات د خورو ورو آثارو مجموعه ده، یا برعکس د ادبي آثارو هره ډلګۍ د معنا او شکل یا محتوا او بنې له مخې تر یو نظم او قانون لاندې راځي. د ادبي ډولونو او آثارو یوه ډیره پخوانۍ او عامه ډلبندي چې لرغونتیا یې د ارسطو زمانې (۳۸٤ - ۳۲۲ ق م) ته رسیږي، په دې لاندې درې سترو برخو ویشل شوې ده:

۱ - ایپیک (داستاني) آثار (۲) لیریک غنایي آثار (۳) ډراماتیک (ډرامایي). په لومړي ډول کې داستاني آثار :رمان، داستان (ناول)، لنډه کیسه او منځنۍ کیسه شامل دي چې په دې آثارو کې د انسان ژوند د لیکوال یا شاعر په حکایتي وینا سره تر سره کیږي.

په دوهم ډول آثارو (غنایي) کې لیکوال د احساساتو، عواطفو، مینې او کرکې نه په ډک زړه، د ژوند په وړاندې واقع کیږي، او د واقعیتونو په منعکسولو سره لوستونکي ته الهام وربخښي. په دې ډول ادبي آثارو کې ډول

ډول غنايي شعرونه او نثرونه شامل دي.

په دريم يا ډرامايي ډول کې هغه آثار دي چې د صحنې مخې ته راځي او پيښې په حاضره بڼه يکې انځور او مجسمې کيږي.

پــه ځينــو ځايونو کې ادبي آثار په څلورو سترو برخو ويشل کړي دي: (١) شعر (٢) داستان (٣) نثر (٤) ډرامايي ادبيات. د ادبي آثارو دا پورته ويشنه په لرغوني يونان او يا په اوسنيو وختونو کې په ځينو اروپايي ادبي مکتبونو او جريانونو کې دود او مروجه ده. زموږ په هيواد او ټولنه او يا په لنډه وينا په فرهنگي عنعنه کې دا دود دی چې ټول ادبي آثار په لومړی سر کې د بڼې له مخې په دوو سترو برخو ويشي؛ چې يوې ته يې «شعر او نظم» او بلې ته يې «نثر» وايي، چې دا هره برخه بيا د بڼې او محتوا يا معنا له مخې ځانته بيل بيل ډولونه لري. موږ دلته په دې ليکنه کې له همدې ويش نه کار اخلو او د منظوم او منثور ادبي آثار تر بيلا بيلو سرليکونو لاندې يې په ډېر لنډيز سره در پيژنو:

## لومړی: نثري ادبي آثار

د مخه تر دې چې د نثري ادبياتو بيلا بيل ډولونه در وپيژنو، لازمه ده چې د خپل بحث لړۍ د نثر په لغوي او ادبي اصطلاحي پيژندنې سره پيل کړو:

**د نثر لغوي او اصطلاحي پيژندنه:**

د نثر لغوی معنا په فرهنگونو کې تيت او شيندل دي او په اصطلاح هغه وينا يا ليکنه ده چې د وزن او قافيې له بند او قيد څخه خالي وي. خو دنننيو ادبپوهانو په اصطلاح نثر يو ادبي ډول دی او څرنگه چې د وزن او قافيې له قيد نه خلاص دی، نو د هر ډول افکارو د افادې او بشري پوهې؛ ديني، فلسفي،

ښوونیزو- روزنیزو او ټولنیزو مسایلو د ځرګندولو مناسبه وسیله ده.

نثر له عادي ویناو او خبرو اترونه لوړ او د فصاحت او بلاغت په ګانه پسوللی دی.

نثر د لیکنې د طرز له مخې پردرې سترو ډولونو ویشل کیږي:

**۱- ساده یا مرسل نثر:** چې لفظي او معنوي صنایع پکې نه وي کارول شوي.

**۲- فني نثر:** چې لیکوال ور سره خپل احساسات او عواطف هم ملګري کوي او یا په بله وینا د مطالبو د افادې له پاره له تخیلي ځواک نه کار اخلي.

**۳- ساده ولسي نثر:** چې کټ مټ د خلکو په ژبه، چې څنګه ویل کیږي هماغسې لیکل کیږي.

د پښتو او دری ژبو لرغونې نثرونه د شکل له مخې په درې ډوله دي:

## الف- متکلف نثرونه:

چې د ټولنې د باسواده قشر له خوا د عربي ژبې تر اغیز لاندې لیکل شوي، کړکیچ پکې ډیر دی. په پښتو کې د سلیمان ماکو د"تذکرة الاولیاء"او په فارسي کې د شیخ عطار د"تذکرة الاولیاء"او داسې نور نثرونه یې غوره بیلګې دي.

## ب- مقفي یا مسجع نثرونه:

چې لیکوال پکې وزن او مسجع لرونکې کلمې د شعر د قافیو په څیر کاروي. (دري یا پارسي) ادب کې یې بیلګې د خواجه عبد الله مناجاتونه او د شیخ سعدي د ګلستان حکایتونه دي او په پښتو کې یې ډیرې ښې نمونې د بایزید روښان «خیر البیان» او د اخون د رویزه «محزن الاسلام» بللی شو.

### ج- ساده او روان نثرونه:

چې نه پکې سجع لیدل کیږي او نه پکې د متکلفو نثرونو په څیر کړکیچ ښکاري، بلکې لیکوالو کوښښ کړی چې د خلکو محاورې ته نږدې نثر ولیکي. په پښتو کې یې لرغونې غوره بیلگه د خوشحال ختک «د ستار نامه» ده.

### د معنا او محتوا له مخې د نثري آثارو ډولونه:

د محتویٰ او موضوع له مخې په عامه توگه نثري آثار په دې لاندې ډولونو ویشل شوي دي:

**۱- حماسي منثور آثار:** چې پخواني او اوسني ملي حماسي مسایل، د اتلانو ویاړلې کارنامې پکې څیړل کیږي.

**۲- غنایي نثري آثار:** چې د مینې محبت عاطفي او احساسي مسایل پکې بیا نیږي.

**۳- تاریخي نثري آثار:** چې د ټولنې، قوم، ملت او خلکو سیاسي، ټولنیزې او علمي پیښې پکې بیانیږي.

**٤- دیني نثري آثار:** په دې ډول آثارو کې د دیني او مذهبي مسایلو پېژندنه شامله ده. د قرآن عظیم الشان او حدیثو تفسیرونه، شرحې او د دین د ارکانو پوهنه او پیژندنه پکې خوندي کیږي.

**۵- عرفاني نثري آثار:** د نفس د تزکیې او روحاني روزنې په هکله د دین د پیروانو او د طریقت د خاوندانو د افکارو بیان دی.

**٦- اخلاقي نثري آثار:** د افرادو او ټولنې د اخلاقي روزنې او خیرښیگنې اړوند مطالب پکې بیانیږي.

**۷- علمي او فلسفي نثري آثار:** د علم د بیلا بیلو څانگو، منطق او

فلسفي اړوند ژورې څېړنې او ليکنې دي.

**۸- انتقادي نثري آثار:** د ژوند او ټولنې د بيلا بيلو مسايلو او اړيکو په اړوند د ژورې او کره کتنې په ترڅ کې د ښېګڼو او بد ګڼو ښودنه يا د ښو ستاينه او د بدو غندنه پکې کېږي.

**۹- د مشاهيرو احوال:** په دې ډول آثارو کې د دين او نورو علومو او فنونو د پوهانو او ټولنيزو شخصيتونو ژوند پېښې، د پيغمبرانو، اولياوو، حکيمانو، اديبانو او پوهانو د ژوند حالات پکې شامل دي.

**۱۰- په ژبې او ادبياتو پورې مربوط منثور آثار:** په دې ډول آثارو کې ټولې ژبنۍ او ادبي څېړنې راځي، يا په بله وينا: د ژبپوهنې او ادبپوهنې بيلابيلې څانګې پکې شاملې دي. دا آثار دا لاندې ډولونه لري:

**الف - د بلاغت فنون:** معاني، بديع او بيان پکې شامل دي. چې «معاني» د حال او ځای له غوښتنو سره د کلام او وينا له مطابقت څخه او «بيان» په بيلا بيلو الفاظو او عبارتونو د يوې ځانګړې معنا له استعمالولو او «بديع» د وينا د لفظي او معنوي ښکلاو او صنعتونو څخه بحث کوي.

**ب - د عروض او قافيې علم:** چې د اشعارو د وزن او د بيتونو د وروستيو هم آهنګو برخو او کلمو د ځانګړنو او څرنګوالي څخه بحث کوي.

**ج - د لغاتو او اصطلاحاتو پيژندنه:** چې د کلمو د معنا، تلفظ طرز او املايي ځانګړنو څخه بحث کوي.

**د - ګرامري آثار:** چې د ژبې د املايي او انشايي ځانګړنو، د آوازونو، کلمو، فقرو، جملو او عبارتونو له جوړښت څخه بحث کوي.

**هـ - د ليکوالۍ يا ليکنې هنر:** چې د کتاب، مقالې، کتابکوټي (رسالې) شخصي او رسمي ليکونو بيلا بيل ډولونه پکې راځي.

**ز - ادبي څېړنې:** په دې برخه کې د ادبي سبک او مکتب پېژندنې، ادبي تيورۍ، ادبي کره کتنې، ادبي تاريخ، ادبي تحليلونه او نور چې پخپله په ژبه کې د څېړنې او يا له نورو ژبو څخه د ژباړنو له لارې کېږي.

د نثري آثارو يو بله دود يزه او معمول ويشنه په دې ډول شوې ده:

۱- تشريحي نثر ۲- استدلالي نثر ۳- توصيفي نثر ٤- داستاني نثر.

چې لـه تشـريحي نثر څخه زياتره د علمي تحليل، مقايسې او تصنيف له پاره کار اخيستل کېږي. په استدلالي نثر کې ليکوال هڅه کوي چې د دليل او بـرهـان لـه لارې لـوسـتـونکي يـا اوريدونکی د يوې خبرې په سموالي باندې قانع کړي،په توصيفي نثر کې موضوع داسې بيانيږي چې ليکونکی مقابل لـوري ته خپل احساس انتقال کړي، يا په بله وينا ليکوال يوه پېښه، يـوه منظـره، شخص يا اشخـاص او شيـان د ټـاکلي هـدف سره سم په ښکلو او فصيحو الفاظو او په داستاني نثر کې خيالي يا واقعي پېښې د زمان او مکان په ترتيب سره بيانوي.

## د بڼې يا شکل (فورم) له مخې د نثر ډولونه:

د بڼې او فورم له مخې اوسني نثرونه په لومړي سر کې په دوو سترو برخو ويشل کېږي:

۱- ساده نثرونه ۲- هنري او ادبي نثرونه

په ساده نثرونو کې ټولې علمي، ادبي سياسي او ژورنالستيکي ليکنې، څېړنيز تحليلي او تشريحي آثار او ليکنې راځي، چې په ساده او روانه ژبه د فکر او نظر د څرګندولو او نورو ته د پوهې او معلوماتو ورلېږدونې ډېره ښه او اغيزمنه طريقه ده. خو هنري او ادبي نثرونه بيا خپلې ځانګړنې لري

چې د هغو له مخې یې له عادي او ساده نثر څخه توپیر کیږي.

اساسي او بنسټیزه ځانګړنه چې ادبي او ساده نثر سره بیلوي هغه «هنریت» یا «ادبي هنري ارزښت» دی. د ادبي نثر د لیکوال احساس، ذوق او تمایلات د مطلب او واقعیت د بیانولو له پاره اساسي رول لري. لیکوال چې څه لیدلي، اوریدلي او احساس کړي وي یا یې په ذهن او خیال کې تیریږي بیانوي، خو د علمي او څیړنیزو لیکنو په څیر دلیل راوړلو ته هیڅ اړتیا نه لري.

په هنري ادبي لیکنو یا نثر کې لیکوال د بیلابیلو منظر کشیو، انساني ټیپیکو خصوصیاتو، روحیاتو. عاداتو، حالاتو او ... په الفاظو کې د انځورولو او وړاندې کولو له پاره له خپل تخیلي ځواک څخه کار اخلي. لیکوال د تخیلي ځواک په مرسته او د لیکوالۍ د هنر د مهارتونو په وسیله د منظر کشۍ او صحنه سازۍ چاره سرته رسوي؛ حالات یا واقعیتونه او پیښې په الفاظو کې داسې انځوروي چې لوستونکی یا اوریدونکی فکر کوي چې هر څه په خپلو سترګو ویني او ځان ورته په صحنه کې شامل ښکاري.

په دغه ډول لیکنو کې دا د لیکوال په استعداد او فني مهارت پورې اړه لري چې انساني رواني حالات، د خلکو هیلې او غوښتنې، جذبات، عواطف او احساسات څنګه په الفاظو انځور یا راونغاړي او مقابل لوري (لوستونکي یا اوریدونکي) ته یې ور لیږدوي او د هغه په عواطفو کې خوځښت راولي. هنري او ادبي نثرونو د بڼې له مخې دا لاندې ډولونه مونږ ته معلوم دي:

(لنډه کیسه، ناول، ډرامه، رومان، طنز، تکل، ادبي ټوټه، سفرنامه، ادبي راپورتاژ، ادبي لیکونه، ادبي انځور، فلمي سناریو او... دلته یې ځینې په ډیر لنډ ډول درپیژنو:

**۱ - لنډه کیسه:** د نثري کیسو یو ډول دی چې لنډه او له داسې یو له بله سره تړلیو عناصرو څخه جوړه وي چې یو د بل تر اغیز لاندې وي، موضوع د خپلو حدودو په چوکاټ کې را نغاړي، بې ضرورته خبرې پکې نه ځائیږيءد ثأتر او اغیز یووالی پکې یوازینی شرط دی. په چوکاټ کې یې: پلاټ (طرحه)، کرکتر، تجسس او تلوسه، مکالمې او منظر کشی، تخیل، د کیسې پایله او نتیجه شامل دي.

**۲ - ناول:** لغوي معنا یې نوی، تازه او عجیبه څیز دی او په ادبي اصطلاح هغې ادبې نثري کیسې یا داستان ته وایي چې له لنډې کیسې څخه لوی او له رومان څخه لنډوي. او په لیکني چوکاټ کې: طرحه، اصلي او فرعي کرکترونه، منظر کشی، مکالمې او د کیسې پیل- منځ او پای لري. له لنډې کیسې سره دا توپیر لري چې هم پکې پیښې په تفصیل سره بیانیږي او هم یې کرکترونه زیات وي.

**۳ - ډرامه:** د یوناني کلمې «ډراو» نه مشتق شوې چې د عمل او کولو معنا لري، له همدې امله د ډرامې د پیژندنې په لړکې د دغه کلمه «په کولو ښودل» تعبیر شوې. په ادبي اصطلاح هغه اثر دی چې د خبرو اترو په فورم لیکل شوی وي، یا په بله وینا: ډرامه د یوې ژوندۍ کیسې نوم دی چې ټول احساسات او جذبات پکې د حرکت او خوځیدو په واسطه څرګندیږي او هره پیښه عملاً د سترګو په وړاندې ښکاري.

ادبپوهان ډراما يي وحدتونه (وحدت زمان- وحدت مکان- وحدت عمل) د ډرامې د فن بنسټيز توکي بولي.

**٤- رومان:** فرانسوي کلمه ده په ځينو فرهنګونو کې يې معنا خيالي داستانونه او په ځينو کې د مينې او محبت کيسې راغلي او په ادبي اصطلاح هغه کيسې ته ويل کيږي چې له ناول څخه اوږده وي، د ژوند ډيرې او بيلا بيلې خواوې پکې منعکس شوې وي او د بيلا بيلو پيښو انځور په ادبي قالب کې ځای کوي.

**۵- ادبي ټوټه:** د هنري ادبياتو يو ځانګړی ډول دی چې ادبپوهانو د "منثور شعر" په نوم هم يادکړی دی او دا ځکه چې اصلاً نثر دی، خو شعري کيفيت لري. په دې ډول ليکنو کې د لوړې انشاء خيال ساتل کيږي، معمولاً حکايوي بنه لري، د يو حقيقت او واقعيت په هکله په زړه پورې تشريح او توضيح کوي، خو دا توضيح او تشريح په داسې رنګينو الفاظو کې نغښتې وي چې په بشري احساس او عواطفو ژوره اغيزه کوي.

**٦- طنز:** عربي کلمه ده چې لغوي معنا يې فرهنګونو: ناز او کرشمه، پيغور او مسخره کول راوړي او په ادبي اصطلاح د هنري ادبياتو يو ژانر دی چې په ليکنه کې يې د ليکوال اصلي مقصد ګوتنيونه (انتقاد) وي، خو دا انتقاد يې د شوخۍ په بڼه او يا په بله وينا د ريشخند او تمسخر په جامه کې نغښتی وي. د وينا لحن او اندازيې په زړه پورې او د ټوکو ټکالو په شکل وي او زياتره وخت پکې مسايل سرچپه (معکوس) مطرح کيږي.

طنز په واقعيت کې هغه ترخه خندا ده چې د ټولنې د خلکو په ناوړه اعمالو، عاداتو، اخلاقو او افکارو باندې کيږي.

**۷- ادبي لیکونه:** د هغه لیکونه دی چې په ځانګړي هنري او ادبي بڼه لیکل کیږي. په دې لیکونو کې یو لړ مهم انتقادي، سیاسي، فلسفي او ادبي مسایل لیکل کیږي او د ادبیانو تر منځ تبادله کیږي. د لیکنې ژبه یې هنري او د تخیل رنګ پرې غالب وي. له استعارو، کنایو، تشبیهاتو او نورو ادبي صنعتونو څخه پکې کار اخیستل شوی وي، ژبه یې خوږه او د لیکنې طرز یې دومره په زړه پورې وي چې لوستونکی یې په لوستنه نه مړیږي.

**۸- ادبي راپورتاژ:** د هنري ادبیاتو یو ځانګړی ژانر دی، له عادي راپورتاژ سره، چې یو ژورنالستیکي ژانر دی، اصلي توپیر د ادی چې په ادبي راپورتاژ کې د پیښې تعبیر، تفسیر او تحلیل په ادبي او هنري ژبه شوی وي. ددې ډول راپورتاژ لیکونکی پیښو ته په دقیق نظر ګوري او له هغه څخه چې کوم برداشت کوي، د تخیل په ملتیایې په خوږه هنري ژبه نورو ته وړاندې کوي.

## دویم : منظوم آثار

د مخه تردې چې د منظومو آثارو د بیلا بیلو ډولونو په اړه څه ووایو، لازمه ده چې لومړی شعر او نظم جلاجلا وپیژنو:

**شعر:** د شعر په هکله تر اوسه د بیلا بیلو ادبپوهانو او څیړونکو له خوا بیل بیل تعریفونه شوي دي. په دې لړکې یو ډېر زوړ او عنعنوي تعریف داسې دی:

«شعر هغه وينا يا کلام دی چې وزن او قافيه ولري.»

په پورتنۍ پيژندنه کې «وزن» او «قافيه» د شعر اساسي توکي ګڼل شوي، خو اوس د آزادو او بې قافيې شعرونو په رامنځته کيدو سره معلومه شوې ده چې قافيه د شعر اصلي توکی نه دی.

په بله پيژندنه کې لولو:

- شعر په موزونو الفاظو د ټولنيز ژوند رښتينی انځور دی. يا شعر په موزونو الفاظو د ټولنيزو پيښو دويم ځلي ژور انعکاس دی.

يو بله پيژندنه يې داسې ده:

شعر د قوي احساس، جذبې او عاطفې تخيلي څرګندونه ده چې په موزونه او آهنګواله توګه شوې وي.

او همدغسې نور زيات شمېر پيژندنې چې د بيلا بيلو پوهانو له خوا شوې او په يو نه يو ډول يې د شعر د کلمې ذوقي تعبير او تشريح نغښتې ده.

ادبپوهانو د شعر د جوړښت له پاره دا لاندې څلور توکي اساسي او ضروري ګڼلي دي:

١- مفکوره، ٢- وزن او آهنګ، ٣- احساس او ادراک، ٤- تخيل (شعريت).

**نظم:** لغوي معنا يې تر تيبول او د مرغلرو په لړکې پيبل دي او په ادبي اصطلاح هغه وينا چې وزن او قافيه ولري (او نثر نه وي) نظم بلل کيږي. د نظم اصطلاح معمولاً د شعر مترادفه يا له هغې سره په يوه معنا استعماليږي، حال دا چې تر مينځ يې جوت او ښکاره توپير شته او هغه دا چې: شعر موزونه او تخيل لرونکې وينا ده او نظم موزونې قافيه لرونکې وينا ته

وايي. په دې حساب مونږ په خپل پښتو او دري ادب کې ډېرې داسې منظومې لرو چې شعر نه دي او يوازې نظم يې ګڼلی شو، لکه ځينې ديني، طبي، او تاريخي منظوم آثار چې ناظمانو نظم کړي، خو د شعريت يا تخيل څرک پکې نه ليدل کيږي، يوازې وزن او قافيه لري. نو په دې اساس ويلی شو چې هره قافيه لرونکې وينا شعر نشو بللی او لکه چې د مخه چې مو يادونه وکړه د شعر له پاره شعريت يا تخيل بنسټيز توکی دی.

## د محتوا او موضوع له مخې د شعر ډولونه:

د محتوی او موضوع يا معنا له مخې شعر دا لاندې ډولونه لري:

**۱- حماسي يا رزمي شعرونه:** چې د جنګونو، اتلوليو او ملي تاريخي وياړنو بيان پکې راغلی وي.

**۲- غنايي شعرونه:** غنا په لغت کې سرود، نغمې او ښکلي آواز ته وايي او په ادبي اصطلاح هغه شعرونه دي چې د شاعر د احساساتو او عواطفو بيانونکي او څرګندوی وي. دغه احساسات خامخا د انساني مينې - محبت، دوستۍ، رنځونو او کړاوونو څخه متأثر يا اغيزمن شوي وي.

**۳- تعليمي شعرونه:** په دې کې هغه شعرونه شامل دي چې د شاعر هدف پکې نورو ته د اخلاقو او غوره ديني، مذهبي، عرفاني او نورو علومو او فنونو ورزده کول وي.

**٤- د مدحې او ستاينې شعرونه:** په دې ډول شعرونو کې شاعر د خپل ممدوح ستاينه کوي، د هغه اخلاقي ښېګڼې بيانوي او د دنيايي ژوند برياوې او ښکلاوې يې ستايي.

**۵ - ديني شعرونه:** په دې ډول شعرونو کې ديني موضوعات، لکه: د الله (ج) توحيد، د دين د بزرگانو اقوال او لارښوونې، ژوند پيښې، عبرتناکې کيسې او په دين او مذهب پورې نور اړوند مسايل شامل دي.

**۶- انتقادي شعرونه (هجو- طنز، هزل):** په دې ډول شعرونو کې د فرد يا ټولنې اخلاقي نيمگړتياوې، نادودې او ناوړه اعمالو ته د انتقاد گوته نيول کيږي او مسايل د هجو او يا طنز په ژبه بيانيږي.

**۷- مرثيه شعرونه:** لغوي معنا يې پر مړې ستاينې او ژړيدنې دې او په ادبي اصطلاح هغه شعرونه دي چې شاعرانو پکې د مړي د نيکيو او ښيگڼو ستاينې کړې وي او د هغه پر مړينه يې د خواشينۍ او خفگان څرگندونه کړې وي.

**۸- د تهنيت، مبارکۍ او هرکلي شعرونه:** د تهنيت لغوي معنا: مبارکي او ښه راغلاست ويل دي او په ادبي اصطلاح د اشعارو دا ډول د مرثيې خلاف دی. شاعر پکې د خوښۍ احساس څرگندوي او نورو ته د خوښۍ پيغام رسوي.

**۹- د گيلو او شکايتونو شعرونه:** په دې ډول شعرونو کې د ژوند له ناوړه او غمناک حالت او د ټولنې ظالم حاکم قدرت نه نه گيله او شکايت شوی وي. شاعر دغسې خپل دردونه او رازونه څرگندوي او نور پرې خبروي چې اصلي هدف يې له خپل حال نه د نورو خبرول دي.

**۱۰- وصفي شعرونه:** په دغه ډول شعرونو کې شاعر د خپلې مستقيمې ليدنې کتنې يا باوري اوريدنې له مخې د اشخاصو، طبيعي منظرو، د کال د فصلونو او نورو شيانو ظاهري صفات شرح کوي او کله کله بيا د خپل تخيلي ځواک په ملتيا معنوي او باطني نړۍ ته داخليږي او د افرادو روحي او عاطفي ځانگړني تشريح کوي.

## د بڼې (شکل) او فورم له مخې د شعر ډولونه:

د بڼې او شکل له مخې شعر دا لاندي ډولونه یا شعري کالبونه لري:

(۱) مثنوي (۲) قصیده (۳) غزل (٤) قطعه (۵) مسمط (٦) مستزاد (۷) ترجیع بند (۸) ترکیب بند (۹) رباعي (۱۰) مربع (۱۱) مثلث (۱۲) مسبع (۱۳) مثمن (۱٤) مسدس (۱۵) مخمس.

دلته لوستونکو ته د معلوماتو له پاره دا هر ډول یا شعري کالب په ډېر لنډه توګه ور پېژنو:

**۱- مثنوي:** هغه شعر دی چې د هر بیت دواړه مسرې (مصرع) یې یو ډول قافیه لري. داچې قافیوي آزادي ډېره لري. اږوده اوږده مطالب او تاریخي، رزمي، بزمي، اخلاقي، عرفاني او ... کیسې او موضوعات پکې په خلاص مټ بیانیدای شي.

**۲- قصیده:** لغوي معنا یې قصد او ارداه ده او په ادبي اصطلاح هغه شعري فورم یا کالب دی چې تر یوې مطلع لاندې ویل کیږي، د بیتونو شمیر یې له شلو څخه تر ۷۰-۸۰ پورې او آن تر ۲۰۰ بیتونو پورې رسیدلی شي. ځینې قصیدې دوه او یا له هغې څخه زیاتې مطلع ګانې هم لري. هره قصیده مطلع، مقطع، نسیب او تشبیب «تغزل» لري.

**۳- غزل:** لغوي معنا یې له ښځو سره خبرې کول او په ادبي اصطلاح د شعر هغه ډول دی چې له اتو څخه تر ۱٦ او کله کله تر ۲۰ بیتونو پورې هم رسیږي چې ټول یې په یو وزن او قافیه وي. جوړښت یې د قصیدې په څېر دی له یوې مطلع نه پیروي کوي او آخري بیت ته یې مقطع وایي چې معمولاً پکې د شاعر نوم یا تخلص راځي.

**٤- رباعي:** هغه شعر دی چې څلور مسرۍ لري، دوې لومړۍ یې په یوه قافیه، دریمه یې آزاده او څلورمه یې له لومړیو دوو سره یوه قافیه لري.

**٥- قطعه:** هغه شعر دی چې مطلع او مقطع نه لري، له یو بیت څخه نیولې بیا تر زیاتو بیتونو پورې وي. کله کله داسې وي چې د شاعر د شعر مطلع او مقطع ولوېږي د قطعې په نامه یې یادوي.

**٦- مثلث:** هغه شعر دی چې هره برخه یې درې درې مسرۍ (مصرع) لري. د دریمې مسرۍ قافیه یې پر مطلع برسیره په ټولو بندونو کې بو رازده، په ځینو کې بیا دریمه مسرۍ بند په بند بدلېږي او ځینو کې هماغه مسرۍ مکرره راځي.

**٧- مسمط:** لغوي معنا یې مرغلرې په لړ کې پیل دي او په ادبي اصطلاح هغه شعر دی چې له څلورو، پنځو او یا شپږ مسرونه جوړ دی، له وروستۍ مسرۍ پرته یې نورې ټولې مسرۍ هم قافیه دي.

**٨- مستزاد:** په هرې مسرۍ یا بیت کې یوه لنډه زیاتونه لري، له همدې امله یې مستزاد بولي، دغه لنډه زیاتونه په معنا کې له هغې مسرۍ سره مربوطه ده، خو له هغې سره هم قافیه نه ده. او بیا په دویمې مسرۍ پسې چې راځي له هغې سره یوه قافیه لري.

**٩- ترجیع بند:** د قصیدې په شان جوړښت لري، خو په څو بندونو ویشل کیږي او د ټولو بندونو وزن یې یو ډول دی، خو هم قافیه نه دي. د هر بند په پای کې یې یو بیت تکرارېږي چې له بندونو سره یې وزن یو شي وي، خو ځانګړې قافیه لري.

۱۰- **ترکیب بند:** دا شعر بیلا بیل بندونه لري چې د بندونو مسرۍ یې په خپل مینځ کې سره هم قافیه وي او بندونه د یو بیت په وسیله یو له بله بیلیږي، د بندونو د بیلونکی بیت دویمه مسرۍ په ټولو کې په یو شان تکراریږي.

۱۱- **مربع:** د مطلع په شمول یې هر بند څلور مسرۍ لري. د مطلع مسرۍ یې ټولې په یوه قافیه او د نورو بندونو څلورمه مسرۍ یې د مطلع سره هم قافیه وي. ټول بندونه یې سره منطقی تړون لري او د وزن یو والی پکې شرط دی.

۱۲- **مخمس:** د شعر دا ډول مطلع او بندونه پنځه پنځه مسرۍ وي. د مطلع پنځه واړه مسرۍ یې یو ډول قافیه لري او د بندونو څلور مه مسرۍ یې هم قافیه او پنځمه له مطلع سره په قافیه کې یو شان وي.

۱۳- **مسدس:** مطلع او بندونه یې له شپږو مسریو څخه جوړ وي، د مطلع ټولې مسرۍ په یوه قافیه او د بندونو یې پنځه په یوه قافیه او شپږمه له مطلع سره یوه قافیه لري.

۱٤- **مسبع:** داهم د مسدس په څیر جوړښت لري، خو یوه مسرۍ یې له هغې زیاته وي (اووه مسرۍ لري).

۱۵- **مثمن:** ددې جوړښت هم کټ مټ د مسدس او مسبع په څیر دی، خو د مسریو شمیر یې اته دی.

## آزاد شعر

آزاد شعر هغه شعر دی چې د عروضي وزنونو تابع نه وي، قافیه او ردیف نه لري، خو آهنګ، وزن او موسیقیت پکې وي. دې ډول شعر ته د «نوی شعر»

او «سپین شعر» نوم هم ور کړل شوی دی.

ځینو خلکو ته آزاد شعرونه له قافیې او ردیف نه پرته له وزن او آهنګ څخه هم آزاد ښکاري، خو دا یوه لویه تیروتنه ده، ځکه کله چې شعر وزن او آهنګ له لاسه ورکړي بیا ورته شعر نه شو ویلی او نثر یې بولو. په آزاد شعر کې وزن او آهنګ اصلي او بنسټیز توکي دي.

آزاد شعر د نولسمې پیړۍ په وروستیو کې په ابتدايي بڼه په لویدیځ کې را مینځته شوی او د شلمې پیړۍ په لومړیو کې یې وده او انکشاف وکړ او ډیر عمومیت یې وموند. ویل کیږي چې د نولسمې پیړۍ په وروستیو او د شلمې پیړۍ په پیل کې په بلجیم کې ایمیل ویر هارن (١٨٥٥ - ١٩١٦ م) په روسیه کې والري بر یوسف (١٨٧٣-١٩٢٤م) او الکساندر بلوک (١٨٨٠-١٩٢١م) آزاد شعر ته وده او انکشاف ورکړی دی.

ځینو ته آزاد شعر لیکل له دې امله چې قافیه او ردیف نه لري، آسانه کار بریښي، خو واقعیت داسې نه دی، او په رښتینې معنا د آزاد شعر لیکل ډیر ستونزور کار دی، ځکه چې په مقیدو شعرونو کې د قافیې او ردیف تر څنګ د مسریو شمیر او د وزن څپې هم ټاکلي وي یا په بله وینا شاعر د خپل شعر حدود پیژندلی شي، خو په آزادو شعرونو کې دا پولې نه معلومیږي، او نه د تول له پاره کومه تله شته، نو وزن یې له دې چې څپه یېز انډولونه لري یوازې د شعر موسیقیت (ټون) له مخې په غیر محسوس ډول تعقیبیږي چې دا کار پوره کړاو غواړي او باید په ډیر غور تر سره شي.

زموږ هیواد ته آزاد شعر په اوسني مفهوم او بڼه دروانې هجري لمریزې پیړۍ په دویمه لسیزه کې (١٣١٥ - ١٣٢٠ش) کې سر را دننه کړ، په پښتو او

دري ادب کې يې رواج وموند. او تر ننه پلويان او لارويان لري. خو د کتنې وړ وده او پرمختګ يې نه دی کړی او له څو د ګوتو په شمير پښتو ژبو او دري ژبو شاعرانو نه پرته د نورو آثار د آزاد شعر خوند او رنګ نه لري.

**مأخذونه:**


١-حسين رزمجو (ډاکتر) انواع ادبي، چاپ اول، مؤسسه انتشارات قدس، ١٣٧٠ هـ ش.

٢-سيروس شمسيا (داکتر) انواع ادبي، تهران، ١٣٧٠ هـ ش.

٣- هيواد مل زلمی (سر محقق) فرهنګ ادبيات پښتو، دريیم ټوک، ١٣٦٧ هـ ش.

٤- رفيع حبيب الله، زرينې څانګې، د افغانستان د علومو اکاډيمي، پښتو ټولنه ١٣٦٠ هـ ش.

٥- روهي محمد صديق (کانديداکاډيمسين) شعر پيژندنه، د ناهيد کتاب چاپولو مؤسسه، پيښور، ١٣٧٤ هـ ش.

٦- هاشمي، سيدمحی الدين، د ليکوالۍ فن، دانش کتابخانه، پيښور، ١٣٧٢ هـ ش.

٧- خسرو فرشيد ورد (ډاکتر) در بارهء ادبيات و نقد ادبي، جلد اول و دوم، تهران، ١٣٦٣ هـ ش.

٨- ذوالقدر، ميمنت مير صادقي، واژه نامهء هنر شاعری، تهران، ١٣٧٣ هـ ش.

٩- الفت ګل پاچا، ادبي بحثونه، سازمان مهاجرين مسلمان افغانستان، ١٣٧٣ هـ ش.

١٠- نادر وزين پور (ډاکتر) برسمند سخن، تهران، ١٣٦٧ هـ ش.

## څلورم څپرکی:

# ادبي فنون

**پيژندنه:** ادبي فنون په عام مفهوم يو لړ ټاکلي اصول او موازين دي چې د هغو په وسيله د ادبي آثارو لفظي او معنوي ښيګڼې يا په بله وينا ښکلاوې او هنري ارزښتونه پيژندل کيږي.

په يوې بلې پيژندنې کې لولو:

ادبي فنون هغه موازين تشريح کوي چې د هغو په وسيله کولی شو د ادبي آثارو لفظي او معنوي ښکلاوې وپيژنو.

### تاريخي شاليد (پس منظر):

په ادبي څيړنو کې يې معاني، بيان او بديع په مجموعي توګه د بياني علومو يا ادبي فنونو په نوم يادکړي دي. د ځينو ادبي څيړونکو په عقيده لومړنی شخص چې په اسلامي دوره کې يې بياني علومو يا د ادبي فنونو تتبع، څيړنه او پلټنه وکړه هغه ابوعبيده مثنی (۲۱۱ هـ ق کال مړ) دی. له نوموړي وروسته جاحظ، مبرد او ابن قتيبه هر يو د دې فنونو قواعد وضع کړل، تر څو چې عبدالقاهر بن عبدالرحمن جرجاني (۴۷۱ هـ ق مړ)، بياني علوم يا ادبي فنون راجمع او تدوين کړل. وروسته ابو يعقوب سکاکي (۶۴۶ هـ ق مړ) هغه د خپل اثر مفتاح العلوم په څلورمه برخه کې بشپړ کړل او بيا ځينو نورو پوهانو، لکه تفتازاني (د مطول مؤلف) د جرجاني او سکاکي د نظريو شرحه وکړه او هغو ته

يې پراختيا ورکړه.

د بيان فن عبدالله بن معتز (په ۳۹٦ هـ ق مړ) وضع کړ او بيا ډېرو اديبانو پردې فن کار کړی دی.

په دري ژبه کې هم ځينو کسانو، لکه محمد بن عمر را دوياني (د ترجمان البلاغه مؤلف) رشيد وطواط (د حدائيق السحر فی الدقايق الشعر) شمس قيس (دالعجم فی معايبرا شعارالعجم مؤلف) او داسې نورو ددې فنونو په هکله ليکنې او څېړنې کړې دي.

## د ادبي فنونو څانگې:

د يوې پخوانۍ ډلبندۍ او ويش له مخې معاني، بيان او بديع په گډه د بياني علومو يا ادبي فنونو په نوم يادېږي.

په بيان کې له تشبيه، استعارې، کنايې او مجاز څخه بحث کېږي، د بديع علم د وينا يا کلام لفظي او معنوي ارزښتونه يا لفظي او معنوي ادبي صنعتونه را پېژني او په معاني کې چې د وينا لفظي او معنوي دواړو خواوو ته پاملرنه کېږي په بنسټيزه توگه له فصاحت او بلاغت څخه بحث کوي.

دلته د ادبي فنونو پورتنۍ بېلا بېلې څانگې په ډېر لنډيز سره در پېژنو:

## لومړی : معاني

**پېژندنه:** معاني هغه ادبي پوهنه يا فن دی چې د هغې په وسيله کولی شو د کلمې يا وينا معنا او مفهوم د حالت له غوښتنې، د اوريدونکي د حال مقام او شان سره د برابرۍ له مخې وپېژنو.

دا علم يا فن يو لړ اصول او قواعد لري چې د هغو پېژندنه او پرې

پوهيدنه له موږ سره دا مرسته کوي چې د حال له غوښتنې سره سمه وينا په آسانۍ سره وپيژنو.

دې ټکي ته مو پام وي چې د حال غوښتنه کله په وينا کې لنډون او کله بيا د اوږدوالي اړتيا پيښوي. د بيلګې په توګه: که د وينا کوونکي مخاطب پوه او عالم وي هغه به ځانته په لنډو الفاظو لوړه معنا او مفاهيم غوره ګڼي، نو وينا کوونکی مجبور دی چې پخپلو الفاظو کې له لنډون، خو پوره جامعيت څخه کار واخلي او که بر عکس ناپوه، نالوستی (بې سواده) او لنډ فکری وي،په دې حال کې بيا وينا کوونکی اړ دی چې خپلې خبرې په تفصيل ،زياتې تشريحي او توضيحي بڼه وکړي چې د اوريدونکي ذهن ته پريوځي.

نو ويلای شو چې په لومړي صورت کې د حال غوښتنه د وينا لنډون او په دويم کې اوږدوالی دی. يا په بله وينا: د حال غوښتنه او اقتضاء د خبرې کمي او کيفي بڼه تعبيرولی شو.

هغه الفاظ کلمې او جملې چې د دويمې معنا له مخې د وينا کوونکي موخه او هدف اوريدونکي ته ور انتقالوي په عامه توګه د معانی د فن موضوع تشکيلوي.

د معاني د علم د تاريخي بهير د مطالعې په لړکې له ادبي څيړنو څخه دومره څرګنديږي چې تر هر څه د مخه د قرآن عظيم الشان اعجاز او د فصاحت او بلاغت بې ساري لوړتيا د عربي ژبې او ادب پوهان دې ته اړ کړل چې د ادبياتو په چوکاټ کې يوه داسې پوهنه رامينځته کړي چې د هغې په وسيله د اِلهي کلام د فصاحت او بلاغت په رموزو او ددغه آسماني کتاب په معجزو ترکيباتو ښه او ژر وپوهيږي.

د ځینو څیړونکو د څرګندونو له مخې لومړنی شخص چې د معاني علم او په ځانګړې توګه د بلاغت په هکله یې کتاب لیکلی هغه ابو عبیده معمر بن مثنی (۲۱۱ هجری قمری کال مړ) دی. د نوموړي لیکلي اثر «مجاز القرآن» نومیږي او ځینې نور بیا ابو عبدالله محمد بن عمران بن موسیٰ بن عبد الله مرزباني خراسانی (۳۷۸ هـ ق مړ) لومړنی لیکوال بولي چې د «المفصل» په نوم یې د بلاغت په علم کې کتاب لیکلی دی. په را وروسته پیړیو کې په عربو او عجمو کې ډېرو پیاوړو لیکوالو په دې ډګر کې خپل قلمي ځواک ازمویلې او ډیر ګټور آثار رامینځته شوي دي.

د معاني علم دا لاندې اته برخې لري:

(۱) خبري اسناد (۲) مسندالیه (۳) مسند (٤) د فعل تعلقات (٥) انشاء (٦) قصر (۷) وصل او فصل (۸) اطناب، ایجاز او مساوات (اوږدوالی، لنډون- برابري). د دې برخو پیژندنه او په بیلګو کې ښودنه توضیح او تشریح زموږ په دې لیکنې چوکاټ کې نه ځائیږي.

د معاني په علم کې چې د وینا لفظي او معنوي دواړو خواوو ته پوره پاملرنه کیږي، په بنستیزه توګه له فصاحت او بلاغت څخه بحث کیږي. موږ دلته د دې دواړو برخو په لنډه لغوي او اصطلاحي پیژندنه د معاني په هکله د خپل بحث لمن را نغاړو:

## فصاحت:

لغوي معنا یې څرګندوالی دی او په ادبي اصطلاح هره کلمه یا وینا چې مطلب او معنا یې ښکاره وي، فصیحه کلمه یا فصیحه وینا ورته ویل کیږي.

په یوې بلې پیژندنې کې یې لولو:

هغه کلمه او وينا چې د تأليف له کمزورتيا، تنافر، غرابت، د قياس له مخالفت، د تکرار زياتوالي، پيچلتيا (تعقيد) او له بې ځايه اضافاتو څخه خالي وي، فصيحه بلل کيږي.

پورتنيو پيژندنو ته په کتنې سره به د فصاحت ځانګړنې داسې په ګوته کړو:

چې وينا يا کلمه غيرمأنوسه او له لغوي قياسه مخالفه نه وي، حروف يې تنافرونه لري، له فصيحو کلماتو څخه ترکيب شوې او دغه ترکيب يې د ژبې په نحوي قانون برابروي، په تأليف کې يې کمزوري او نقصان نه وي. که چيرې وينا د تأليف کمزوري ولري، نو بيا هغه په مطلوبه معنا څرګند دلالت نه کوي. په دغه صورت کې په وينا کې پيچلتيا (تعقيد) پيدا او معنا يې ګونګه شي، نو د فصاحت له چوکاټ نه وځي.

## بلاغت:

لغوي معنا يې آخر، انتها او وروستي پوړ ته رسيدل دي او په ادبي اصطلاح کې د حال له مقتضا او غوښتنې سره دوينا او کلام سمون (مطابقت) ته بلاغت ويل کيږي.

يعنې هغه وينا چې له ځای، موقع، د مخاطب او ويونکي له حال سره سمه او مناسبه وي، بليغه وينا يې بولي.

وينا موزونه وي که ناموزونه يا په بله ژبه شعروي که نثر، په لوستونکي يا اوريدونکي باندې هغه وخت ښه اغيزه کولی شي چې د حال له غوښتنې سره برابره وي. همدغې ته ادبپوهان «بلاغت» وايي او همدغه د حال له غوښتنې سره د برابرۍ کچه او اندازه د وينا يو سبک يا لاره او روش له بل نه زيات معقول او مقبول ګرځوي.

د بلاغت علم دوه قاعدې لريْ: یو دا چې د یو مطلب او مفهوم د څرګندولو لپاره مختلفې طریقې بیانول زده وي چې وینا کوونکی ځای ته په کتنه هغه انداز خپل کړي. دویم دا چې په وینا کې ښکلا او ښه والی پیدا کړای شي.

ځینې خلک فصاحت او بلاغت یو شی ګڼي او د دوی تر مینځ په بیلتون نه قایلیږي، حال دا چې دا دواړه ځانګړي بحثونه دي، چې توپیر به یې تاسې ته له پورتنیو پیژندنو څخه هم لږ وډیر در څرګند شوی وي، خو ډیر څرګند او جوت توپیریې دادی چې «فصاحت» د وینا صفت او ستاینه ده او «بلاغت» یې د معنا».

په هر بلیغ کلام کې خامخا فصاحت موجود وي، مګر بې فصاحته کلام ته بلیغ نشي ویل کیدای، مګر بلاغت له فصاحت سره هغسې تړون نه لري او بې بلاغته هم فصاحت موجود یدلی شي.

په ځینو ادبي ځیړنو کې د بلاغت فنون درې ښودل شوي دي:

لومړی معاني، چې د مخه مو پرې لنډ شان بحث وکړ، دویم بیان او دریم بدیع چې وروسته پرې ځغلنده کتنه او بحث کوو.

## دویم: بیان

**پیژندنه:** د بیان لغوي معنا څرګندول ده او په ادبي اصطلاح هغه پوهنه ده چې د هغې په مرسته کولی شو چې یوه یا څو معناوې په داسې بیلا بیلو لارو ادا کړو چې د څرګندتیا او ابهام له مخې ښکاره توپیر ولري.

په یوې بلې پیژندنه کې لولو: هغه قواعد او لارې چارې چې د هغو په

وسیله انسان د خپل مطلب ثرگندونه په ښه زړه پورې او اغیزناک انداز کې وړاندې کولی شي د بیان علم بلل کیږي.

او یوه بله پیژندنه یې داسې ده: په بیلا بیلو طریقو د یوې معنا وړاندې کول یا ثرگندول دي، خو په دې شرط چې د هغو لارو او طریقو بیلوالی او اختلاف پر تخیل ولاړ وي. مثلاً که غواړو ووایو چې «د هغه صورت ښکلی دی» دا مطلب داسې هم ویلی شو: د هغه مخ لکه سپوږمۍ یا گل دی.

نو ویلای شو چې د بیان علم مو د یوې معنا د بیانولو له بیلا بیلو لارو او طریقو سره آشنا کوي او دا زده کوو چې ثرنگه د شاعرانو په شعر کې د هغو کلمو او عبارتونو په اصلي مقصد پوه شو چې په اصلي معنا نه دي کارول شوې.

بیان د ادبي فنونو د یوې سترې ثانگې په توگه پراخې ثیړنې او توضیحاتو ته اړتیا لري چې په هغې پورې اړوندو برخو په بیلا بیلو اړخونو مفصله رڼا واچول شي، خو مونږ دلته د لیکنې لنډ او تنگ چوکاټ په کتنه او پاملرنه دا کار نشو کولی، نو د هغې د ثلورو سترو برخو په لنډه پیژندنه اکتفا کوو:

د بیان په علم کې له دې ثلورو سترو برخو ثخه بحث کیږي:

۱- تشبیه، ۲- استعاره، ۳- کنایه، ٤- مجاز.

۱- تشبیه:

د تشبیه لغوي معنا د دووشیانو په یوه معنا کې گډون دی او په ادبي اصطلاح د دووشیانو له یو بل سره هم رنگه یا یو ډول کول دي، خو په دې شرط چې دا هم رنگه یا هم مثله کول ادعا یې وي نه رښتیني.

په بله وینا: یو شی د ثه خاص صفت په وجه د بل په شان گرثول دي

چې دا وریدونکي یا لوستونکي په زړه او ذهن کې د هغه شي تصویر وګرځي. بل دا چې هغه صفت په دواړو کې موجود وي. خو دلته دا خبره ضروري ده چې کوم شي ته تشبیه ورکول کیږي «مشبه» او له څه شي سره تشبیه ورکول کیږي «مشبه به» د دواړو ترمینځ یوه مشترکه وجه او صفت وي چې هغې ته د «تشبیه وجه» ویل کیږي. مثلاً که موږ وایو : احمد د زمري په شان میړنی دی.

په احمد او زمری دواړو کې «میړنتوب» مشترکه وجه ده.

**د تشبیه رکنونه:**

تشبیه پنځه رکنونه لري:

(۱) مشبه ،(۲) مشبه به، (۳) وجه شبه، (٤) د تشبیه ادات، (٥) د تشبه غرض .

مشبه: کوم شي ته چې تشبیه ورکول کیږي.

مشبه به: چې د کوم شي سره تشبیه ورکول کیږي.

د تشبیه وجه: چې د کوم صفت په وجه تشبیه ورکول کیږي.

د تشبیه ادات: د کومو اداتو په وسیله چې تشبیه قایمیږي یا ذهن ته راځي: (لکه، په څیر، غوندې، په شان، په راز، په دود او...)

د تشبیه غرض: چې د کوم مقصد او هدف له پاره یو شي د بل شي سره تشبیه کیږي.

باید یادونه وکړو چې هر شاعر د خپل ذوق سره سم د تشبیه د ارکانو (مشبه، مشبه به، ادات او د تشبه وجه) په ټاکنه کې لاس پکار کیږي، له دې سره سره بیا هم ذهني او عیني عوامل د تشبیهاتو په را وړلو کې پر شاعر اغیزه

لري. یا په بله ژبه ویلی شو چې تشبیه د شاعر د ژوند د چاپیریال او تجربو ځرګندویه او ښکارندویه وي.

ادبپوهانو تشبیه په واقعیت کې د معنا د بیانولو ډیره لومړنۍ او آسانه لاره چاره بللې ده. څرنګه چې انسان د ډیرو کارونو او شیانو له ماهئیت او حقیقت څخه خبر نه دی او هغه شیان نشي تعریف کولی، نو هغه له هغو شیانو سره چې دی یې ښه پیژني او ور سره آشنا دی، تشبیه کوي.

تشبیه چې یو شی په یو صفت یا حالت له بل شي سره پیوندوي معمولاً د تخیل له مخې (خیال انګیز) وي. داسې یې و انګیرو چې ګویا شاعر د خپل خیال په قوت او ملتیا ځینې غایب، پټ او نا ځرګند شیان ځرګندوي.

د تشبیه لطافت له ابتذال نه په لرې والي کې دی، او هغه داسې ښه تر سره کیږي چې د تشبیه وجه داسې څه وي چې زر ذهن ته را نشي او لوستونکی یا اوریدونکی د فکر ژور تیا ته اړباسي.

تشبیه د بیلا بیلو خواوو او ځرنګوالي په اعتبار ډیر زیات ډولونه لري چې د هغو ټولو یادونه او پر هر اعتبار وېش او ډلبندي او تعریفونه ددې لیکنې له حوصلې نه وتلې کار دی، دلته یې یوازې د ډیر مهمو او مشهورو ډولونو د نومونو په یادونه بسنه کوو:

مفصله تشبیه، مؤکده تشبیه، قریبه تشبیه، بعیده تشبیه، جمع تشبیه، تسویه تشبیه، مرکبه تشبیه، مفرده تشبیه، ملفوفه تشبیه، مفروقه تشبیه، تفضیلي تشبیه، معکوسه تشبیه، مجمله تشبیه، مقیده تشبیه، تمثلیه تشبیه، مقبوله تشبیه، مردوده تشبیه او ....

## ۲- استعاره:

لغوي معنا يې په سوال او امانت، عاريت يا پور څه شی غوښتلو ته وايي او په ادبي اصطلاح په حقيقت کې د تشبيه لنډ شکل دی چې په هغې کې د تشبيه له ارکانو څخه يو استعمال شي.

يا په بل عبارت: استعاره په اصطلاح کې يوه کلمه په غير حقيقي معنا استعمالول دي. او د حقيقي او مجازي معنا تر مينځ علاقه مشابهت او ورته والی دی.

استعاره د تشبيه يو ډول ښکاري چې د تشبيه توری پکې نه وي راغلی. د بيلگې په ډول که څوک ووايي چې: «دا اوبه د شهدو په څير خوږې دي» نو دا يوه تشبيه ده، ځکه چې د تشبيه ټول ارکان (مشبه، مشبه به، وجه شبه، ادات) پکې شته. او که همدا خبره داسې وشي چې: «دا اوبه شهد دي» نو دا استعاره شوه.

**د استعارې ارکان:**

استعاره څلور رکنونه لري: ۱- مستعار ۲- مستارله ۳-مستعارمنه او وجه جامع.

**مستعار:** هغه کلمه چې د خپلې حقيقي معنا په ځای په بله معنا اخيستل شوې وي.

**مستعار له:** هغه کلمه چې د هغې له پاره بل ټکی مستعار اخيستل شوی وی.

**مستعار منه:** هغه کلمه چې مستعاره اخيستل شوې وي، يعنې د کلمې خپله حقيقي معنا د کومې له پاره چې جوړه وي.

**وجه جامع:** په څه وجه چې یوه کلمه مستعاره اخیستل شوې وي.

## د استعارې او تشبیه توپیرونه:

لکه چې د مخه مو یادونه وکړه چې استعاره د تشبیه لنډ شکل دی، له تشبیه سره دا لاندې توپیرونه لري:

۱- په تشبیه کې مشبه او مشبه به دواړه ذکر کیږي، خو په استعاره کې یوازې مشبه به یا مشبه ذکر کیږي.

۲- په تشبیه کې کله کله د تشبیه ادات یا وجه را وړل کیږي، په داسې حال کې چې په استعاره کې نه ادات راځي او نه وجه جامع.

۳-تشبیه قرینې ته اړتیا نه لري، خو په استعاره کې قرینه ضروري ده. هغه لفظي وي او که د وینا له سیاق نه معلومه شي.

٤- د تشبیه ارکانو ته مشبه، مشبه به او وجه شبه وایي، خو په استعاره کې مستعارله، مستعارمنه او وجه جامع بلل کیږي.

**د استعارې ډولونه:**

استعاره د طرفینو، مستعار لفظ، وجه جامع، د ملایماتو د ذکر او هدف له مخې دا لاندې ډولونه لري:

۱- تصریحیه استعاره، (۲) مجرده استعاره، (۳) مرشحه استعاره، (٤) بالکنایه استعاره ،(۵) وفاقیه استعاره، (٦) عنادیه استعاره، (۷) اصلیه استعاره، (۸) تبعیه استعاره، (۹) مطلقه استعاره ،(۱۰) غریبه استعاره، (۱۱) مبتذله استعاره.

## ۳- مجاز:

د مجاز لغوي معنا تیریدل یا تجاوز کول ده او په ادبي اصطلاح هغه

کلمه چې له خپلې حقیقي معنا څخه په غیر حقیقي معنا استعمال شي او هغه معنا له یوه جهته له اصلي معنا سره ورته والی او شباهت ولري.

یا په بله وینا: کله چې یوه کلمه له خپلې حقیقي معنا نه علاوه په بله معنا کې استعمال شي او حقیقي او غیر حقیقي دواړو معنا گانو کې یې د تشبیه اړیکې نه وي، یوه داسې قرینه پکې موجوده وي چې د هغې په وجه ترې مجازي معنا واخېستل شي، مجاز یا مرسل مجاز ورته ویل کیږي، د بیلگې په توگه کوم څوک ووایي چې: «فلاني له ماسره په سخته کې لاس وکړ» دا چې مرسته د لاسونو په وسیله هم کیدای شي، نو دلته په مجازي توگه مرستې ته لاس وویل شو. د دواړو تر مینځه د تشبیه هیڅ اړیکي نشته.

البته په مجاز کې دا شرط دی چې د حقیقي او هغه غیر حقیقي معنا تر مینځ چې شاعر یې د هغې له پاره لفظي مجاز کاروي یو مناسبت هم وي، چې د غې مناسبت ته «علاقه» وایي.

همدارنگه که د حقیقي او غیر حقیقي معنا تر مینځه علاقه مشابهت یا ورته والی وي، دې ته استعاره وایې، خو که جزئیت او کلیت، سببیت او مسببیت، ظرفیت او مظروفیت او داسې نورروي، مرسل مجاز ورته وایي. مرسل د آزاد په معنا دی او د استعارې په څیر په یوې خاصې علاقې پوری مقید نه دی.

ځینې ادب پوهان د مجاز د ارزښت او اهمیت په هکله وایي چې مجاز شعر ته روح او ژوند وربښي. مجاز ډیر ډولونه لري، خو په ټولو کې یې علاقه موجوده وي.

په ځینو ادبي څیړنو کې یې مجاز په عمومي توگه په دوه ډوله ویشلی دی:

۱- مفرد مجاز، ۲- مرکب مجاز.

دا لاندې طریقې او علاقې لري:

۱- جز د کل له پاره، ۲- کل د جز له پاره، ۳- سبب د مسبب له پاره، ٤- مسبب د سبب له پاره، ٥- ظرف د مظروف له پاره، ٦- مظروف د ظرف له پاره، ۷- مکان د مکین له پاره، ۸- ماضي د حال له پاره، ۹- مستقبل د حال له پاره، ۱۰- خاص د عام له پاره، ۱۱- اندام د خپل صفت له پاره.

## ٤- کنایه:

کنایه لغت کې پټه خبره کول یا په داسې اندازه کې خبره کول دي چې د مدعا څرګندتیا پکې نه وي او په ادبي اصطلاح کې دې ته وایي چې یوه کلمه د خپلې حقیقي معنا پر ځای په مجازي معنا داسې وکارول شي چې هم حقیقي معنا ورکړي او هم ترې مجازي معنا تر لاسه شي. د بیلګې په توګه که یو څوک ووایي چې: «ما ویښته په لمر نه دي سپین کړي» دا یوه کنایه ده او مطلب یې دادی چې شخص د خپلې ډیرې تجربې ادعا کوي.

په ادبیاتو کې کله چې څرګنده خبره کول مشکل او ستونزمنه وي، لیکوال یا شاعر په خپلې وینا کې له کنایې څخه کار اخلي. په دري ادبیاتو کې د کنایوي لیکنو ډیره غوره بیلګه «کلیله و دمنه» کتاب دی. چې ظاهراً د حیواناتو او الوتونکو کیسې دي، خو ژور سیاسي او انتقادي مطالب پکې نغښتي دي، په ځینو مواردو کې کنایه په وینا کې د ظرافت پیدا کولو له پاره وي چې عادي وینا ته د شعر خوند او رنګ ورکوي، نو ویلای شو چې کنایه وینا ته لطافت ورکوي.

کنایه په، لومړي سر کې په دریو ډولو ویشي: له صفت نه کنایه (قرینه او

بعیده) له موصوف نه کنایه او له نسبت نه کنایه.

او په یو بل ویش کې بیا په قریبه او بعیده، جلي او خفي، تلویح، رمز، ایما او اشاره، تعریض هم راغلې ده.

## دریم: بدیع

د بدیع لغوي معنا نوی، تازه او حیرانونکی شی دی او په ادبي اصطلاح هغه پوهنه ده چې د وینا او کلام له ښکلا او هغو صنایعو څخه چې نظم او نثر ته ښکلا وربښي، بحث کوي.

یا پــه بله وینا: هغــه پوهنه چې د وینا یا کلام ښکلا پرې معلومېږي بدیع بلل کېږي.

د بدیع د علم موضوع فصیحه او بلیغه ادبي وینا ده او هغه څه ته چې د بلیغې وینا د ښکلا سبب کېږي ادبي صنعتونه وایي.

ددې پوهنې وضعه کوونکی عبد اللّٰه بن معتز دی چې په ۲۷٤ هجري قمري کال یې په دې اړه په عربي ژبه یو مفصل کتاب ولیکه او ورو ورو دغه پوهنه نورو ژبو ته هم خپره شوه.

ادبي صنایع په دوه ډوله دي:

۱- لفظي صنعتونه، ۲- معنوي صنعتونه.

**۱- لفظي صنعتونه:** چې د وینا ښکلا په کلمو پورې اړه ولري، که دغو کلمو ته د معنا په خوندي ساتنه (حفظ) بدلون ورکړو د وینا ښکلا له منځه ځي.

د لفظي صنايعو په ډله کې دا لاندې صنعتونه شامل دي:

تجنيس (بيلا بيل ډولونه) سوال ځواب، ذوالقوافی، قلب، اشتقاق، قول بالموجب، شبه اشتياق، تلميح، توشيح، سياق الاعداد، تلميح، ترافق، مربع، تکرار، تضمين، معما، تدبيج، منقوط، غير منقوط، براعت الطلب، ردالعجز، لزوم مايلزم، سجع او ....

**۲- معنوي صنعتونه:** هغه صنعتونه دي چې د وينا يا کلام ښکلا په معنا پورې اړه ولري. که کلمې ته د معنا په حفظ بدلون ورکړو بيا هم ښکلا پر خپل ځای پاتې کيږي.

په دې ډله کې دا لاندې صنعتونه شامل دي:

تضاد يا طباق، ايهام، لف ونشر، عکس و تبديل، تجاهل عارفانه، التفات، جمع، تفريق، تقسيم، مراعات النظير، ايهام، تضاد، ارسال المثل، تعجب، محتمل الضدين، مبالغه حسن تعليل، تنسيق الصفات استدلال، مخاطبه، هجو، استخدام، ادماج، مزاوجه، المدح بما يشبه الذم، الذم بما يشبه المدح، براعت الاستهلال، رجوع، ارصاد او....

## قافيه

**لغوي او اصطلاحي پيژندنه:** قافيه عربي کلمه ده، په لغت کې څټ يا شاته ويل کيږي او په اصطلاح کې هغه پوهنه ده چې د دوروله وروستيو همآهنګيو څخه بحث کوي.

قافيه پخوا د شعر له اساسي توکيو او برخو څخه ګڼل کيده، خو اوس د بې قافيې او آزادو شعرونو په رامينځته کيدو سره سمه نه بريښي.

د قافيې کلمې هغه دي چې د دورونو په پای کې په لازمه همآهنگۍ مراعات شوي وي. قافيه دا لاندې (۹) توري لري:

۱- روی، (۲) ردف، (۳) قيد، (٤) د تأسيس الف، (٥) د خيل يا متغاير توری، (٦) وصل، (۷) خروج، (۸) مزيد، (۹) نايرہ.

د قافيې کلمه شپږ حرکتونه لري:

(۱) رس، (۲) اشباع، (۳) حذو، (٤) توجيه، (٥) مجری، (٦) نفاذ.

قافيه په عامه توګه دا لاندې ډولونه لري:

(۱) حکمي قافيه، (۲) حتمي قافيه (الف: غبرګه قافيه، ب: يو ستوې قافيه)

يو ستوې قافيه بيا په ساده او مرکبه باندې ويشل کيږي او مرکبه قافيه په څلوره ډوله ده:

(۱) مؤسسه قافيه، (۲) مقيده قافيه، (۳) مردفه قافيه، (٤) موصله قافيه.

**د قافيې عيبونه يا نيمګړتياوې:** دا لاندې عيبونه د قافيې نيمګړتياوې ګڼل کيږي:

(۱) اقوا (د خذوی اختلاف او د توجيه اختلاف د اشباع اختلاف)، (۲) سناد، (۳) اکفا، (٤) غلو، (٥) تعدی، (٦) عدول، (۷) ايطا، (۸) د رديف تغير، (۹) د فشار تغير، (۱۰) د اصلي او معمولي قافيې ګډون.

# عـروض

**لغوي او اصطلاحي پیژندنه:** د عروض لغوي معنا فرهنگونو: غرنۍ لاره، عرضه کول، د شعر میزان او د بیت د لومړۍ مسرۍ وروستی رکن راخیستی دی. په ادبي اصطلاح هغه پوهنه ده چې د هغې په وسیله د عربي شعر د وزنونو کره او ناکره، سم او ناسم پیژندل کیږي.

یا په بله وینا: هغه پوهنه ده چې د عربي او دري شعرونو له وزنونو څخه بحث کوي او په دغو ژبو کې د وزنونو د سنجش قواعد او اصول په لاس راکوي.

ددې پوهنې وضع کوونکی خلیل بن احمد الفراهیدي (۱۰۰ – ۱۷۵ هـ) دی. او عروض ځکه ورته وایي چې د خلیل پر قواعدو عرضه کیږي. ددې علم موضوع شعر ته د سموالي او ناسموالي له مخې کتل دي.

رکنونه یې ددې علم اجزا او افاعیل دي.

**افاعیل:** هغه حرکتونه او سکنات یا په بله وینا د غږونو یوه مجموعه ده چې د شعر یو بیت ور څخه جوړیږي.

هر ببت دوې برخې وي چې هرې برخې ته یې مسرۍ (مصراع) وایي. د بیت لومړۍ مسرۍ ته صدر وایي او وروستي جز ته یې عروض وایي او د دویمې مسرۍ لومړۍ برخې ته ابتداٗ وایي او وروستی ضرب یا عجز بولي. هغه اجزاوې چې د صدر او عروض یا ابتداء او ضرب په مینځ کې راځي «حشو» بلل کیږي.

افاعیل لس کلمې دي: فعولن، فاعلن، مفاعیلن، فاعلاتن، مستفعلن، مفاعلتن، متفاعلن، مفعولات، فاعلاتن، مستفعلن. له دې څخه په عربي رسم الخط دوه پنځه حرفیز او نور ټول اووه حرفیز دي.

زحافات کله کله له خپل اصلي حال څخه بدلون مومي، دغه بدلون ته زحاف وایي. زحافات درې دي:

یو دا چې متحرک ساکن کړي، بل دا چې له تورو څخه یو توری کم کړي، دریم دا چې په اصلي تورو نور څه ورزیات کړي. زحاف دا لاندې ډولونه لري: اضمار، عصب، خبن، وقف، عقل، طی، قبض، کف او وقص دا ټول مفرد دي او په مرکبو زحافونو کې دا ډولونه شامل دي: شکل، خزل، تشعیث، اذاله، قصر، قطع، کسف، خذف، خذ، صلم، قطف، بتر، تسبیغ، ترفېل، جدع، جب، هتم، نص، زلل، عقص، خبل، ضرب، شتر، ثلم، ثرم، خرم، قصم، جمعه.

**بحرونه:** د عربي عروض ۱٦ بحرونه لري:

طویل بحر: چې بیت په دې بحر کې په څلور واره فعولن، مفاعلین تمامیږي.

مدید بحر (څلور واره فاعلاتن فاعلن) بسیط بحر (څلور واره مستفعلن فاعلن) سریع بحر (دوه واره مستفعلن، مستفعلن مفعولات حفیف بحر (دوه واره فاعلاتن مستفعلن فاعلاتن) منسرح بحر (څلورواره مستفعلن مفعولات)، محبث بحر (مستفعلن، فاعلاتن څلور واره) مضارع بحر (څلور واره مفاعیلن فاعلاتن) مقتضب بحر (څلور واره مفعولات، مستفعلن) وافر بحر (اته واره متفاعلن) هزج بحر (اته واره مفاعیلن) رجز بحر (اته واره مستفعلن) رمل بحر (اته واره فاعلاتن) متقارب بحر (اته واره فعولن) او متدارک بحر (اته ځله فاعلن).

---

**یادښت:** د یادونې وړ ده چې دغه د عربي عروض په دري یا فارسي شاعرۍ کې زیاترو شاعرانو کارولی دي، خو په پښتو کې ځینو شاعرانو په ډېرې خوارۍ دا هڅه کړې چې ځینې د عربي عروضو په اوزانو برابر شعرونه ووایي په هغو کې د دولت لواڼي، میاشرف، عیسی هوتک، سمندرخان بدرښی، عبدالعلی اخوانزاده نومونه د یادونې وړ دی. د ځینو ادبپوهانو د څرګندونو له مخې عروض په فارسي شعر کې هم کټ مټ نه تطبیقیږي او لږو ډېر بدلون پکې راځي. ډاکتر پرویز ناتل خانلري (۱۲۹۲ - ۱۳٦۹ ش) د فارسي شعر د وزن له پاره ساده او علمي اصول جوړ کړل چې اوس د «عروض خانلری» په نوم یادیږي.

**مأخذونه:**

(۱) قـویم، عبـدالقیـوم، فنـون ادبـي (بیـان) پوهنتون کابل، ۱۳٦۱ هـ ش.
(۲) بینوا عبد الروف، ادبي فنون، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۲٦ هـ ش.
(۳) جلیل تجلیل (ډاکتر) معانی وبیان، ایران، ۱۳٦۹ هـ ش.
(٤) استاد همایی، جلال الدین، فنون بلاغت وصناعات ادبي، تهران، ۱۳۷۰ هـ ش.
(۵) رضا نژاد غلام حسین، اصول علم بلاغت در زبان فارسي، انتشارات الزهرا، تهران، ۱۳٦۷ هـ ش.
(٦) مجروح، مشتاق یوسفزی، زرکانی، تاج کتب خانه پیښور، ۱۹۹۵ م.
(۷) رفیع حبیب الله، زریني ځانګې، د افغانستان د علومو اکاډیمي، پښتو ټولنه، ۱۳٦۱ هـ ش
(۸) سیروس شمسیا، بیان، انتشارات فردوس، ایران، ۱۳۷۲ هـ ش.
(۹) بیتاب، عبدالحق (پوهاند)، قافیه و عروض، پوهنتون کابل، ۱۳٤۷ هـ ش.
(۱۰) ذوالقـدر، میمنت میرصادقی، واژه نامهٔ شاعری، تهران، ۱۳۷٦ هـ ش.
(۱۱) همکار، محمد ابراهیم، د قافیې فن، التقوی عالي لیسه، پیښور، ۱۳۷۸ هـ ش.
(۱۲) داکتر فاروقي محمد طاهر، فصاحت وبلاغت، یونیورستی بک ایجنسی، پیښور، ۱۹۵۹ م.
(۱۳) بیتاب (پـوهـاند)، علم معانی، پوهنتون کابل، پوهنځی زبان و ادبیات.
(۱٤) الفت، گل پاچا، ادبي بحثونه، سازمان مهاجرین افغانستان، ۱۳۷۳ هـ ش.
(۱۵) پښتـو-پښتـو تشریحي قـاموس، څلورم ټوک، د افغـانسـتان د علـومو اکاډیمی، د ژبو او ادبیاتو مرکز، ۱۳٦۵ هـ ش.
(۱٦) هیواد مل، زلمی، (سرمحقق) فرهنگ ادبیات پښتو، دریم جلد، ۱۳٦۵ هـ ش.

پنځم څپرکی:

# ادبي مکتبونه او سبکونه

په دې برخه کې در سره د ادبي سبک او مکتب پر لغوي او اصطلاحي پېژندنې برسېره د "سبک" او "مکتب" په توپیرونو، د ادبي مکتب د پیدا ښت او پای ښت پر مسئله د زړه خواله کوو او بیا په ترتیب سره په لنډه توګه د پښتو او فارسي ادب لرغوني ادبي مکتبونه در پېژنو او د ځینو نړیوالو ادبي مکتبونو په لنډه پېژندنه د بحث لړۍ پای ته رسوو:

**لغوي او اصطلاحي پېژندنه:**

**۱ – سبک:** عربي کلمه ده چې معنا او مفهوم یې د سرو او سپینو ویلې کول او کالب کې اچول دي، او په ادبي اصطلاح سبک د یو شاعر یا لیکوال د وینا او لیکنې لارې، اسلوب او روش ته وایي.

**۲ – مکتب:** لغوي **معنايې د لیکڼې**، زده کړې او ښوونې ځای او په ادبي اصطلاح هغه پراخ ادبي جریان او لاره ده چې د زیات شمیر ادیبانو (شاعرانو او لیکوالو) د سبکونو له ګډون څخه مینځته راغلی وي. ځینې ادبپوهان یې په تشریحي ډول داسې را پېژني: ادبي مکتب د هغو نظریو، ادبي او فرهنګي ځانګړنو مجموعه ده چې د یو یا څو هیوادونو د فرهنګي ټولنیزې او سیاسي اوضاع په بهیر کې رامینځته شوې وي.

دغه ځانګړنې معمولاً د لیکوالو او شاعرانو د یوې ډلې په آثارو کې سره ګډې او مشترکې وي او د نورو شاعرانو او لیکوالو له تخلیقي آثارو څخه د

توپیر او بیلتون سبب ګرځي. همدغه ګډې ځانګړنې یا خصوصیات چې کله ادبپوهانو او کره کتونکو ( نقادانو ) په نښه کړي یا را اېستلي او هغه یې د یو ادبي جریان د بنسټیزو اصولو په توګه ښودلي دي په همغه وخت یاد وره او یا په را وروسته وختونو کې نورو لیکوالو او شاعرانو د دغه اصولو پیروي کړې او د هغو پر بنسټ یې خپل ادبي آثار را مینځته کړي دي او د غسې دغه ادبي لاره د یوې لنډې یا اوږدې مودې له پاره ساتل شوې او پالل شوې، چې اوس موږ هغې ته د" ادبي مکتب" یا جریان نوم ورکوو.

## د ادبي مکتب او سبک توپیرونه :

په دې کې شک نشته چې ادبي مکتب او ادبي سبک په خپل مینځ کې سره نږدې اړیکې لري، خو یو شی نه دي. د دواړو پیژندنې مود مخه ولوستلې د هغې له مخې به یې په توپیر پوهیدلي یاست، ددې له پاره چې د توپیر او بیلتون کرښه پوره روښانه او ثرګنده شي، دلته یو شمیر توپیرونه ښیو چې د ادبي ثیرنو په بهیر کې د دغو دوو ادبي اصطلاحاتو په اړه ثرګند شوي دي:

۱ - ادبي سبک د ادبي مکتب په پرتله (مقایسه) ځانګړی، محدود او یا په بله وینا فردي بڼه لري، خو د ادبي مکتب مفهوم د هغې په نسبت عام، پراخ او یوه ډله لیکوالان او شاعران یا په بله وینا د ادبي آثارو رامینځته کوونکي په خپله پراخه لمن کې رانغاړي.

۲ - سبک په خپلو ذاتي کلیاتو کې یوازې د یوه شخص ( چې را مینځته کوونکی یې دی ) ثیره ثرګندوي، خو مکتب بیا د یوې ډلې (د ادبي آثارو رامینځته کوونکو ) د ادبي خصوصیاتو او ځانګړنو ثرګندویي کوي.

۳ - سبک د مکتب په حدودو او حوزه کې ځان ثرګندوي، خو ادبي

مکتب بیا د څو سبکونو له یو شانته والي او ګډون څخه مېنځته راځي.

٤-سبک د یوې ټاکلې او محدودې تاریخي دورې څرګندویي کوي، مګر مکتب یوه ډېره پراخه دوره را چاپیروي.

د پایلې او نتیجې په توګه ویلای شو چې: مکتب عام او پراخ دی او سبک خاص او محدود. هر ادبي مکتب په عین حال کې یوه لویه او پراخه ادبي لاره یا سبک وي چې د څو سبکونو له ګډون څخه جوړ شوی وي، مګر هر ادبي سبک هیڅکله ځانګړی ادبي مکتب نشي ګڼل کیدای. که دا خبره لږه نوره هم څرګنده کړو، نو ویه وایو چې: هر لیکوال او شاعر ځانته بیل بیل سبک لري، خو دا ضروري نه ده چې د هر سبک خاوند شاعر دې د مکتب خاوند هم وي. خو په ادبي مکتب کې دا ضروري ده چې هغه به خامخا د زیاتو شاعرانو یا لیکوالانو له سبکي ګډون څخه را مینځته شوی وي. کله کله داسې هم کیږي چې د یو شاعر یا لیکوال د خاص او ځانګړي سبک د نفوذ ساحه او دایره پراخه شي، نور سبکونه پکې منحل او هماغه ادبي سبک د یو ادبي مکتب په بڼه تبارز وکړي.

په پښتو ادب کې یې ډېر څرګند مثال د خوشحال خان خټک ادبي سبک ګڼلی شو چې د خټکو د مکتب په بڼه څرګند شوی دی.

## د ادبي مکتب د جوړښت او پاینښت مسئله:

د مخه مو ددې ټکي یادونه وکړه چې ادبي مکتب په یوه ټاکلي ادبي دوره کې د لیکوالانو او شاعرانو له ادبي سبکونو څخه چې د فکري، هنري او تخلیقي روش له مخې سره ورته والی لري را مینځته کیږي.

د ادبي څیړنو په بهیر کې څرګنده شوې ده چې د ادبیاتو د بشپړ تیایي جریان له مخې ادبي جریان یا مکتب د هغه پړاو محصول دی چې د ژبې د ادبیات

پخوالي ته رسيدلي وي. د ادبي مکتب را مينځته کيدل د يوې ټولنې په ټاکليو تاريخي ټولنيزو او فرهنګي شرايطو پورې اړه لري او هر مکتب د يوې ډلې اديبانو د ذوقي او فکري تمايلاتو او ګټو استازيتوب کوي، ځکه نو د تاريخ په اوږدو کې بيلا بيل ادبي جريانونه د خپلو ځانګړو تاريخي او ټولنيزو خصلتونو په لرلو سره د بيلو بيلو پرګنو د ډله ييزو ارمانونو او ګټو د تبليغ له پاره کاريدلي دي.

د هر ادبي مکتب يا جريان ځانګړنې په ادبي آثارو کې په تدريج سره ښکاره کيږي. هر ادبي مکتب د يو پخواني يا مخکيني مکتب د نظرياتو د لړۍ طبيعي نتيجه ده او کله کله د هغه پر ضد يو عکس العمل، پاڅون او بغاوت دی.

نو ويلای شو چې د هيڅ ادبي مکتب پيدا ينبت او پا يښت تصادفي او ناڅاپي کار نه دی.

د يو مکتب را مينځته کوونکو يا بنسټ ايښودونکو هم په لومړيو کې د خپل ادبي مکتب د ځانګړي کار او ادبي ارزښت له ځانګړنو څخه پوره خبرتيا نه ده لرلې، وروسته بيا ادبپوهانو او کره کتونکو د څيړنو په بهير کې د هغوی ادبي يا هنري لارې تشخيص، ادبي ارزښتونه يې ښودلي او تدوين کړي او هغه يې د يو ځانګړي مکتب د کړنلارې په توګه اعلان، د هغوی ادبي روښونه او هدفونه يې توضيح کړي چې په نتيجه کې بيا نورو هنروالو د هغوی دې ادبي او هنري لارې ته پام شوی، هغه يې تعقيب کړې، د پياوړتيا يا بشپړتيا پولې ته يې رسولې او په دې ډول يې د يو ځانګړي ادبي مکتب بڼه خپله کړې ده.

د يادونې وړ ده چې ځينې ادبي مکتبونه په لومړيو کې د نظريو او تيورۍ په توګه را مينځته شوي، وروسته بيا هماغه نظريې يا تيورۍ نورو

لیکوالو په عمل کې پلې کړي او د وخت په تیریدو سره ور څخه یو ادبي مکتب جوړ شوی دی.

که څه هم د یو ادبي مکتب څرګندیدل په یوې تاریخي د وره کې پر ټولنه له مسلطې او حاکمې ټولنیزې، سیاسي او فرهنګي اوضاع څخه سرچینه اخلي، مګر له دې سره سره بیا هم کله کله داسې شوي دي چې په یو وخت کې بشپړ متفاوت ادبي مکتبونه په یوه هیواد کې را مینځته شوي، یو د بل په څنګ کې وده موندلې او له خپل منځني توپیرونو سره سره هر یو ځانته خپل خپل پیروان موندلي دي.

د ادبي مکتبونو د ودې او پرمختیا په لړ کې زیاتره وخت داسې هم شوي دي چې ځینې ادبي مکتبونه یا جریانونو لومړی په یو هېواد کې تر ځانګړو شرایطو لاندې مینځته راغلي دي، بیا یې د ټولنیزو نړیوالو اړیکو په بهیر کې د نورو هیوادونو ادبیاتو ته هم لاره موندلې او کله کله ورته هلته داسې لارې چارې برابرې شوي چې له هغه لومړني هیواد څخه، چې د ادبي مکتبونه پکې را مینځته شوي دي، دلته ډیره وده کړې، د پرمختګ پړاوونه یې وهلي، په اصولو کې یې بدلونونه او سمونونه راغلي او نړیوال شهرت یې تر لاسه کړی دی.

ځینې داسې ادبي مکتبونه هم شته چې د څو ادبي مکتبونو له ترکیب او د ادبي هنري نظر یو له یو ځای کیدو څخه مینځته راغلي او د یو ځانګړي ادبي مکتب بڼه یې خپله کړې ده.

په دې وروستیو دوو پیړیو کې د اولسونو تر مینځ د فرهنګي اړیکو پراختیا او پرمختیا سره او په نړیوال ډګر کې د ټولنیزو، سیاسي، فلسفي او ادبي نظریو په خپریدو سره د یو بل فرهنګ او ادب په هکله د زیاتې پیژند ګلوۍ

د ترلاسه کولو او د فرهنګي اغیزو بهیر هم ډیر چټک شوی دی، دا کار د ادبي مکتبونو د عمر د دوام او لنډون او یو په بل کې د ګډون له پاره ښې لارې چارې برابرې کړي دي. د غسې په نړیواله سطحه ډیر نوي ادبي مکتبونه مینځته راغلي او ډیر یې ژر له مینځه تللي دي.

نو ویلای شو چې اوسنۍ پراخې نړیوالې اړیکي د ادبي مکتبونو په خپریدو او په نورو هیوادونو کې د پلویانو موندلو له پاره ښې اغیزمنې وسیلې دي. همدا لامل دی چې نن مونږ د خپلو ژبو په ادبیاتو کې د اروپایې ادبي مکتبونو پلویان لرو چې د هغو مکتبونو د اصولو په پیروۍ ادبي آثار تخلیقوي او د خپلو ژبو ادبي پانګه پرې بډای کوي.

اوس چې مو د ادبي سبک، مکتب او د هغو جوړښت او پاینښت په اړه څه ناڅه معلومات تر لاسه کړل، خپلې اصلي موضوع ته راګرځو او د پښتو لرغوني ادبي مکتبونو په لنډه پیژندنه د بحث لړۍ غځوو.

## د پښتو ادبي مکتبونه

د مخه تردې چې د پښتو ځینې ادبي مکتبونه در وپیژنو، باید ووایو چې د پښتو، د ادبي جریانونو او مکتبونو په باب تر اوسه بشپړ منظم او اکاډمیک څیړنیز کار نه دی شوی او په دې باب نورو ډیرو څیړنو ته اړتیا لیدل کیږي. کله چې د پښتو د ادبي تاریخ زرینې پاڼې را اړوو د ځینو داسې سترو ادبي جریانونو بیلګې مخې ته راځي چې د ادبي مکتب بنسټیزې ځانګړنې پکې څرګندې دي، زموږ پیاوړو څیړونکو او ادبپوهانو په خپلو لیکنو کې د غه ادبي جریانونه د

پښتو ادبي مکتبونه بللي او نومولي دي چې دلته یې په لنډه توگه درپیژنو:

## ۱ - روښاني ادبي مکتب:

دغه ادبي مکتب دلسمې هجري پیړۍ په دویمه نیمايي کې رامینځته شوی، بنسټگرېې پیاوړی عالم او لیکوال بایزید روښان (۹۳۰- ۹۸۱هـ ق) دی. نوموړي د خپلې تصوفي او عرفاني لارې د تبلیغ او خپراوي له پاره فرهنگي هلې ځلې پیل کړې. په لیکنو کې یې ځانگړې لاره او سبک را مینځته کړه، ډیر پلویان یې وموندل، هغوی دده لاره تعقیب کړه او دغسې روښاني ادبي تصوفي مکتب جوړ شو. ددې مکتب د پیاوړو لیکوالو او شاعرانو په ډله کې دا لاندې نومونه د یادونې وړ دي:

ارزاني، علي محمد مخلص، دولت لواڼی، ابابکر قندهاری، واصل روښاني، میرخان روښاني، میرزاخان انصاري، اورکزی، قادر داد او نور.

**ادبي ځانگړنې:**

۱ - د تصوف او عرفان پیچلو مسایلو او اصطلاحاتو په پراخه پیمانه پښتو ادب ته لاره کړې. یا په بله وینا: عرفان د یو مسلک په توگه پښتو ادب ته راغلی دی.

۲ - د عربي او فارسي شاعرۍ زیاتر شکلي فورمونه، لکه: قطعه، رباعي، قصیدې او نور پښتو ادب رانونتي او شاعرانو د عربي او فارسي ژبو د شاعرانو په څیر مردف دیوانونه جوړ کړي دي.

۳ - په نثري لیکنو کې مسجع نثر رواج شوی دی.

٤ - اخلاقي او دیني مسایل په شعر او ادب کې زیات شوي، حماسي او ملي روحیه پکې ډیره تته او کمزورې ښکاري.

۵ - دا چې د دې دورې زياتره ليکوال او شاعران د هند پر ځمکو اوسيدلي او يا هلته تللي راغلي دي د هندي فرهنګ اغېزې پرې جوتې ليدل کېږي.

۶- په پښتو ادب د عربي او فارسي ادب اغيز ډېر زيات شوی دی. د دې دورې ليکوالو او شاعرانو پخپله هم په عربي او فارسي ژبو آثار ليکلي او هم يې ژباړنې ترې کړې دي.

## ۲ - د خوشحال ادبي مکتب:

دغه ادبي مکتب کله کله په ادبي څېړنو کې د «خټکو ادبي مکتب» په نوم هم ياد شوی دی. په يو لسمه هجري پېړۍ کې مينځته راغلي او بنسټ اېښودونکی يې د پښتو ژبې پياوړی شاعر او ليکوال، د تورې او قلم خاوند خوشحال خان خټک (۱۰۲۲ - ۱۱۰۰هـ ق) و.

د نوموړي ادبي لاره د ده زامنو، لمسيانو او نورو پلويانو د زړه په وينه او مينه پاللې او د خوشحال ادبي مکتب يې جوړ کړی دی.

د دې مکتب نوميالی پلويان: اشرف خان هجري، عبدالقادر خان خټک، سکندر خان خټک، صدر خان خټک او نور دي.

**ادبي ځانګړنې:**

۱ - پښتو ادب يو نوي پرمختيايي پړاو ته داخلېږي او د ودې او پرختيا له پاره يې شعوري هڅې پيل کېږي.

۲ -د مسجع او متکلف نثر پرځای ساده، روان او د خلکو محاورې ته نږدې نثر ليکنه پيل کېږي او د خټکو ځانګړی ليکدود (رسم الخط) رامينځته کېږي.

۳ - په شاعرۍ کې حماسي، رزمي او ملي روحيه ډېره پياوړې کېږي او د پښتنو له ټولنيز ژوندا نه رنګ اخلي.

٤- پښتو شعر د مضمون له پلوه بشپړشو. په پخوانیو عشقي، عرفاني، وعظیه اخلاقي موضوعاتو برسیره د اجتماعي ژوند بیلا بیل موضوعات، تاریخي پیښې، پر تولنه انتقاد، له وطن او قوم سره د مینې احساسات په شعر او ادب کې په پراخه پیمانه منعکس کیږي.

٥- پښتو ادب ته د شرقي شاعرۍ ټول انواع، له غزل، قصیدې، رباعي، مثنوي، او مربع برسیره چې موږ یې تردې د مخه دوره کې هم نمونې لرلې، مسدس، مثمن، ترکیب بند، ترجیع بند، ذوالقافتین او نور ډولونه په پښتو شاعرۍ کې په پراخه پیمانه رواج مومي.

٦- د پښتنو ملي کیسې (لکه آدم خان او درخانۍ، دلی او شهۍ) ولیکل شوې او هم له نورو ژبو څخه ډیرې کیسې وژباړل شوې او د پښتو د قصصي او حکایوي ادب پانګه درنه شوه.

٧- ددې دورې ادبیات د موضوع درنګارنګۍ او هنري ارزښتونو له پلوه ښه بډای کیږي او د سیمې له ادبیاتو سره د سیالۍ څنګونه وهي.

٨- شاعران له خپلې مورنۍ ژبې بر سیره په فارسي ژبه هم شعرونه وایي.

## ۳- د رحمان بابا تصوفي، عرفاني ادبي مکتب:

د پښتو پیاوړی شاعر رحمان بابا (۱۰٤۲ - ۱۱۲۸ هـ) د یو ځانګړي تصوفي عرفاني ادبي سبک خاوند و، چې هغه له زیات ټولنیز مقبولیت نه برخمن شو، پخپل وخت او را وروسته زمانه کې یې ډیر پلویان وموندل چې د بابا ادبي لاره یې تعقیب او د وخت په تیریدویې د یو ادبي مکتب بڼه غوره کړه چې په ادبي څیړنو کې د رحمان بابا تصوفي عرفاني ادبي مکتب په نوم یاد شوی دی.

د دې ادبي مکتب نوميالي پلويان: يونس خيبري، معزالله مومند، اخون گدا، حافظ الپوري، ميا نعيم متي زی، عبدالعظيم رانيزی، عبدالرحيم هوتک، مطيع الله او نور دي.

**ادبي ځانگړنې:**

۱- د دې ادبي مکتب پلويان زياتره د اخلاقو او نصايحو د بيان خواته ډيره پاملرنه کوي.

۲- د تصوف او عرفان پيچلې مسئلې په ساده، روانه، خوږه او رنگينه ژبه بيانول د دې ادبي مکتبستره ځانگړنه ده.

۳- د عربي، پارسي ژبو کلمات، اصطلاحات، تشبيهات او استعارات په پراخه پيمانه پښتو شاعرۍ ته رانغوتې دي.

٤- د پښتو شعر وده موندلې او ډيرو شاعرانو د خپلو اشعارو ديوانونه ترتيب کړي دي.

٥- په دې ادبي مکتب کې د پښتني چاپيريال خپل رنگونه په ځليدو دي او د هندي سبک اغيزې پکې ډيرې نه ليدل کيږي.

٦- د دې ادبي مکتب د پلويانو شاعرانو په ځينو اشعارو کې د هنر او شاعرانه خيالونو نږۍ خپلې ځانگړنې لري، انځورونه او خيالونه يې ساده، مگر ډير ښکلي او په زړه پورې له لوړ ادبي معيار نه برخمن دي.

۷- د دې ادبي مکتب پلويان واقعيتونو ته ډير پاملرنه کوي او د خيال پلويتوب او تابعيت پکې ډير کم دی.

۸- د دې مکتب پلويانو له پښتو برسيره په پارسي او هندي ژبو هم شاعري کړې.

## ٤- د حمید او شیدا د نازکخیالۍ ادبي مکتب:

د پښتو د نازکخیالۍ ادبي مکتب د دولسمې هجري پېړۍ په اوږدو کې د هندي مکتب تر اغیزو لاندې را مینځته شوی دی. بنسټګر یې د پښتو نازکخیاله شاعر عبدالحمید مومند (تر ۱۱٤۷ هـ ق پوري ژوندی) او بشپړونکی یې کاظم خان شیدا (۱۱۳۵- ۱۱۹٤ هـ ق) ګڼل شوی دی.

سره له دې چې ددې دواړو ادبي سبکونه یو له بله څه نا څه توپیر او تریوې اندازې بیلې ځانګړنې لري او په زماني لحاظ هم یو له بله څو لسیزې وړاندې وروسته دي، خو دا چې دواړه د هندي سبک د لړو یا ډیرو اغیزو په منلو د نازکخیالۍ لاره تعقیبوي او د ډیرو پیاوړو ادبي سبکونو خاوندان کیږي، د خپل وخت یا وروسته زمانې ډیر شاعران ددوی د ادبي لارې پلویتوب کوي، د دغو بیلا بیلو سبکونو له ګډون څخه یو ادبي مکتب مینځته راځي چې په ادبي څیړنو کې "د حمید او شیدا د نازکخیالۍ ادبي مکتب" نوم ورکړل شوی دي.

ددې ادبي مکتب پیاوړي استازي له حمید مومند او کاظم خان شیدا برسیره چې ددې مکتب بنسټګر بللي شوي، قلندر اپریدی، محمدي صاحبزاده، حنان بارکزی، کامګار ختک، بیدل هشتنغری، علي خان او نور دی.

**ادبي ځانګړنې:**

۱- اوچت تخیل، نازکخیالۍ، نوښت، نادرې استعارې او تشبیه ګانې ددې ادبي ښوونځي بنسټیزه ځانګړنه ده.

۲- ددې ادبي مکتب پیروان غزلویونکي دي او دغه ادبي ډول یا فورم یې کمال ته رسولی دی.

۳-د اشعارو موضوع زياتره د مينې او محبت مسايلو ته وقف شوې او له سوزو سازه ډک دي.

٤- سره له دې چې دا ادبي مکتب د هندي مکتب تر اغيز لاندې را مېنځته شوی، پښتني ژوند او چاپيريال هم پکې پخپله بڼه انځور شوی، استعارې او تشبيه گانې يې په دغه خم کې رنگ شوي دي.

۵- د خيال په نازکۍ او د معنا په باريکۍ سربيره په الفاظو او عبارتونو کې د ښکلا، سوز او ساز پيدا کول د دې مکتب غوره ځانگړنه ده.

٦- په شعرونو کې متلونه، عامې محاورې او سيمه ييزه اصطلاحات ډير استعمال شوي دي.

۷- د فارسي ژبې او ادب اغيزه د دې مکتب پلويانو زياته منلې ده.

۸- حکايتي ادب او له نورو ژبو، په ځانگړې توگه له پارسي نه ژباړنو ډير عموميت موندلی دی.

# د دري يا پارسي ادبي مکتبونه

نوميالي اديب ملک الشعرأ بهار په خپل مشهور اثر «سبک شناسی» کې د پارسي شاعرۍ له پاره په عامه توگه دا څلور ادبي مکتبونه ښودلي دي:

۱- خراساني يا ترکستانی ادبي مکتب

۲- عراقي ادبي مکتب

۳- هندي ادبي مکتب

٤- د بازگشت دورې ادبي مکتب

د مخه تردې چې دا پورتني ادبي مکتبونه په لنډه توگه در وپيژنو د دې

خبرې یادونه ضروري ده چې دا یادشوي ادبي مکتبونه په زیاترو پخوانیو ادبي ثېرنو کې د ادبي سبکونو په نوم یاد شوي څو دا یوه لویه تېروتنه ده چې په ادبي ثېرنو او لیکنو کې پرله پسې تکرار شوې او اوس هم زموږ ډېر لیکوال ادبي مکتب او سبک نه سره توپیروي او یو د بل پر ځای استعمالوي حال دا چې دواړه ځانګړې ادبي اصطلاح ګانې دي چې موږ یې توپیرونه د دې بحث په لومړیو کې په ګوته کړل. نو د هغو په رڼا کې موږ دا په ځغرده ویلی شو چې دا ادبي جریانونه ادبي مکتبونه وو چې هر یوه په پراخو جغرافیوي ساحو کې نفوذ درلود او د ځانګړو پیروانو د ادبي سبکونو د یو ځای کېدو څخه رامینځته شوي او ترېېریو یې دوام موندلی دی.

## ۱- خراسانی ادبي مکتب:

دې ادبي مکتب ته کله کله ترکستانی ادبي مکتب هم ویل شوی دی.

دغه ادبي مکتب پخپله پراخه لمن کې د دري- فارسي شعر ادبي جریان له معلومې ابتدأ او پیلامې نه را په دې خوا د اوومې هجري پیړۍ تر نیمایي پورې را نغاړي او د طاهریانو، صفاریانو، سامانیانو، غزنویانو، غوریانو، سلجوقیانو او... د واکمنیو د بیلا بیلو پیریوپېړیو کې د ځلاندو او پیاوړو ادبي بهیرونو ثرګندویي کوي. د دې مکتب په پلویانو کې: د فردوسي، فرخي سیستاني، خواجه عبدالله انصاري، حکیم ناصر خسرو بلخي، مسعود سعد سلمان، سنایي غزنوي، انوري، خاقاني، نظامي ګنجوي، شیخ فریدالدین عطار او نورو نومونه د یادونې وړ دي.

**ادبي ځانګړنې:**

۱- د واکمنو او نورو د مدحو او ستاینو زیاتوالی او قصیدې ویل.

۲- په شعر کې د کیسو او حماسو رواجېدل، لکه د فردوسي شاهنامه او د خمسه نظامی ځینې مثنوی گانې.

۳- غزل او اخلاقی شعرونه ډېر لږ وو.

٤- په شعر کې د درنو او ثقیلو کلمو او اوږدو او مشکلو بحرونو کارول.

۵- لفظي او بدیعي صنایعو ته لږه پاملرنه او د شعري سبک ساده والی.

## ۲- عراقي ادبي مکتب:

دا د دري - فارسي ژبې ډېر په زړه پورې ادبي مکتب گڼل شوی، چې د اوومې هجري پېړۍ له نیمایي څخه د لسمې هجري پېړۍ تر وروستیو پورې یې د فارسي ژبې په قلمرو، په ځانگړې توگه د افغانستان او ایران په ځینو برخو کې، دوام موندلی دی.

ددې مکتب په نومیالیو پیروانو کې: مولانا جلال الدین بلخي، سعدي شیرازي، امیر خسرو د هلوي، مولانا عبد الرحمن جامي، حافظ شیرازي، کمال خجندي، بابا فغاني شیرازي، وحشي باقفی او نور د یادوني وړ دي.

**ادبي ځانگړنې:**

۱- په دغه ادبي مکتب کې غزل ډېر د پاملرنې وړ گرځیدلی دی.

۲- د ادبي بدیعي صنایعو او د شعر د بیلا بیلو اصنافو او ډولو رواجیدل.

۳- عرفاني او تصوفي افکارو په شعر کې ډېر او ژور انعکاس موندلی دی.

٤- عربي لغات او اصطلاحات فارسي ژبې او ادب ته ډېر راننوتي دي، خو ددې مکتب د پیروانو د ځانگړي مهارت له مخې په شعر او ادب کې کومه پیچلتیا نه پیښبوي.

۵- ددي مکتب د پیروانو په اشعارو کې معنوي صنایع، کنایه، ابهام او تمثیل، تشبیه او استعاره ډېر کارول شوي دي.

٦- د شعر او ادب لفظي او معنوي ځانګړنو ډېره پیاوړتیا موندلې ده.

## ۳- هندي ادبي مکتب:

د فارسي شعر او ادب دغه مکتب د لسمې هجرې پیړۍ له پای یا د یو لسمې هجري پیړۍ له پیل څخه را مینځته شوی،تر دولسمې پیړۍ پورې یې په ایران او تر ډیره پورې په هندوستان، افغانستان او نورو سیمو کې دوام کړی دی.

ددې ادبي مکتب په پیاوړو او نومیالیو پیروانو کې د: عرفي شیرازي، غني کشمیري، صایب تبریزي، میرزا عبدالقادر بیدل، میرزا اسد اللّٰه غالب او نورو نومونه د یادونې وړ دي.

**ادبي ځانګړنې:**

۱- د نویو او بکرو خبرو له پاره هڅه.

۲- مضمون آفرینې.

۳- د لفظي او معنوي صنعتونو په زیات استعمال سره د وېنا پیچلتیا او کړکیچ.

٤- په مبالغه کې غلو او افراط.

۵- د مضمون او تشبیه د را مینځته کولو له پاره له چاپیریال او شاوخوا څخه استفاده.

٦- د ارسال المثل صنعت زیاته کارونه.

۷- د تخیل زیاته ژورتیا.

## ٤- بازگشت ادبي مکتب:

دغه ادبي مکتب د دولسمې هجري پېړۍ په وروستيو کې په اصفهان کې را مينځته شوی دی. ددې مکتب پيروانو هڅه وکړه چې ځان د هندي مکتب له پيچلتيا څخه وژغوري او د هغوی خلاف مضامين او موضوعات په ساده ژبه بيان کړي.

ددې چارې له پاره دوی بيرته د فارسي ادب لرغونو مکتبونو (خراساني او عراقي) ته مخه وکړه. ددې مکتب زياترو پلويانو به د سعدي شيرازي او يا حافظ په پيروۍ شعرونه ويل.

ددې ادبي مکتب په سر لارو کې د سيدمحمد شعله اصفهانی (۱۱٦۰ هـ ق مړ) ميرزا محمد نصير اصفهانی (۱۱۹۲ هـ ق مړ) مير سيد علی مشتاق اصفهانی (۱۱۷۱ هـ ق مړ) او نورو نومونه د يادونې وړ دي.

# نړيوال ادبي مکتبونه

د مخه تر دې چې نړيوال ادبي مکتبونه در وپېژنو، ددې خبرې يادونه ضروري او لازمي ده؛ هغه څه چې د لويديځ يا نورې نړۍ په ادبياتو کې د ادبي مکتبونو په نوم پيژندل شوي او موږ يې له نومونو سره آشنا يو، د هغو ځانګړنې او اصول چې د بيلو بيلو تاريخي، سياسي، فلسفي افکارو او ټولنيزو اړيکو او فرهنګي شرايطو تراغيز لاندې را مينځته شوي، زموږ په ادبياتو کې کټ مټ د تطبيق وړ نه دي. که موږ د خپلو ژبو په ادبياتو کې د کوم يو ادبي مکتب هغو ته ورته ځانګړنې د بيلا بيلو ادبي دورو د يو يا څو شاعرانو او ليکوالو په آثارو کې پيدا هم کړو، دا به د ادبياتو د ټولنيز خصلت او ماهيت له مخې وي، پر

شاعر او ليکوال يې د هغو ادبي مکتبونو مستقيمه اغيزه هيڅکله نه شو ګڼلی.

د نړيوالو ادبي مکتبونو شمير زيات دی، دلته يې ځينې ډير مشهور در پيژنو:

## ۱ - کلاسيزم:

د کلاسيزم ترکيبي کلمه چې له «کلاس» يا «کلاسيک» له کلمو څخه د «ايزم» د وروستاړي (لاحقې) په مرسته جوړه شوې، لغوي معنا يې په فرهنګونو کې پخوانی يا لرغونی، اولنی، تاريخي، هغه څه چې په لرغونو او قديمو زمانو پورې اړه لري، راغلې ده. او په ادبي اصطلاح هغه هنري ادبي ښوونځی (مکتب) دی چې د اروپا د هنر او ادبياتو په ډګر کې يې لږو ډير درې پيړۍ (له پنځه لسمې نه تر اتلسمې ميلادی پورې) رواج درلود. او ښکلاتيز اصول او لارې يې د لرغوني يونان او روم له هنر او ادبياتو څخه اخيستې دي. ځينو په ادبي څيړنو کې ددې ادبي مکتب د پيدا ښت لومړنی ټاټوبی انګلستان، خو په زياترو کې فرانسه ښودل شوی دی چې له هغه ځايه المان او د اروپانورو هيوادونو ته خپور شوی دی.

**اصول او ځانګړنې:**

۱ - د لرغونو تقليد: ددې ادبي مکتب پلويانو تل دا هڅه کړې چې د لرغونې زمانې د اديبانو او ادبپوهانو ادبي نظريات مطالعه کړي او خپل آثار د هغوی په تقليد وليکي.

۲ - د طبيعت تقليد يا پيښې: ددې مکتب هر پلوی مجبورو چې تر هر قانون او قاعدې نه مخکې د طبيعت تقليد وکړي.

۳ - د عقل اصالت: ددی مکتب پلويان عقل په وينا او کړنه کې د انسان

لاربنود ګني او د عقلاني اصولو پیروي دوی ته ډېر مهمه ده.

٤- لنډون او څرګندتیا: د دې ادبي مکتب په ټولو آثارو کې دې اصل ته پاملرنه شوې ده.

٥- د درې وحدتونو (وحدت زمان، وحدت مکان، وحدت موضوع) قانون ته پاملرنه.

٦- په ادبي آثارو کې دیني او اخلاقي مسایلو ته ډېره پاملرنه شوې ده.

٧- کرکټرونه خیالي او فوق العاده نه دي، بلکې طبیعي او د لوړو اخلاقو په لرلو سره هر چا ته د منلو وړ وي.

٨- ساده ګي او رواني خوښوي.

٩- د اثر په ټولو برخو کې تناسب او هماهنګي مراعات کول.

١٠- فصاحت او بلاغت ته زیاته پاملرنه.

**د کلاسیزم نومیالي استازي:** په فرانسه کې راسین، بوالو، پاسکال، لافونتین ... په انګلستان کې: جان میلتون، درایدن او په ایټالیا کې: الفیري او ګلدوني دي.

## ٢- رومانتسیزم:

و رومانتسیزم د رومان له کلمې څخه اخیستل شوی چې لغوي معنا یې خیالي، افسانوي او عشقي ده او په ادبي اصطلاح د یو ادبي مکتب نوم دی چې د اتلسمې میلادي پېړۍ په پای کې د کلاسیکي ادبي مکتب په مخالفت په اروپا کې را مینځته شو. په ١٩ پېړۍ کې د نړۍ په ډېرو هیوادونو کې خپور او د ادب او هنر په بیلا بیلو څانګو، په ځانګړې توګه انځورګرۍ (نقاشۍ) کې یې ډېره وده او پرمختیا وموندله.

**ځانګړنې:**

۱ - د خیال او فکر آزادي او بې پروایي.

۲ - لوړ تخیل او الوت.

۳ - د ښکلا او جمال ستاینه.

٤ - د لغاتو او ژبنیو تعبیرونو پراختیا.

۵ - له ادبي قید و بند نه ځان خلاصول، او لکه چې د دې مکتب یو پیاوړی لاروی ویکتور هوګو په ویل: «رومانتسیزم یعنې د شرایطو له بې ځایه قیدونو څخه د ادبیاتو آزادي».

**د دې ادبي مکتب نومیالی استازی:** په فرانسه کې: ویکتورهوګو، شاتوبریان، د ولامارتین، په انګلستان کې: ویلیام شکسپیر، والترسکاټ او شلي، په روسیه کې: مینحایل لرمانتوف، الکساندر پوشکین په ایټالیا کې: الکساندر مانزوني او په مجارستان کې: شاندر پتوفي دي.

## ۳ - ریالیزم:

دا ادبي ښوونځی له رومانتسیزم نه وروسته په فرانسه کې را مینځته شو. د غلته یې لومړنی بنسټګر بالزاک ګڼل شوی دی. د دې ادبي مکتب د نولسمې پیړۍ له لومړۍ نیمایي څخه وروسته رواج وموند او د اروپا د خلکو پاملرنه یې له خیالي او رومانتیکو افکارو څخه د ژوند واقعیتونو ته واړوله. د دې ادبي مکتب پلویانو د ژوند د ورځنیو مسایلو او پیښو په هکله خبرې کولې او واقعیتونه به (ښکلي وو او که ناوړه او بدرنګ) په خپلو ادبي آثارو کې بیانول.

**ځانګړنې:**

۱ - په دې ادبي مکتب کې د ژوند، چاپېریال، موجوداتو او ټولنیز مسایل څنګه چې دي هسې بیان شوي دي.

۲ - د ادبي کیسو موضوعات هغه عیني مسایل دي چې د ټولنې زیاتره خلک ورسره مخامخ دي، لکه لوږه، بدمرغي، رنځوري، دوستي، دښمني، کرکه او کینه، زیاتره د خلکو روحي او جسمي غوښتني او اړتیاوې.

۳ - د کیسو اتلان (قهرمانان) چې د ټولنې له هرې طبقې څخه غوره کیږي کردارونه، اخلاق او عادات یې باید واقعي او عیني وي، نه دا چې خیالي او له واقعیت څخه لرې.

٤ - په ادبي آثارو کې د پېښو د ټولو جزئیاتو او اړخونو ژور او دقیق راخیستلو ته ډېره پاملرنه.

۵ - د واقعیتونو په درک کولو کې ډیر غور، دقت، ځیرکیدنه (کنجکاوي) ځیرنه او پلټنه د ادبي آثارو د لیکوال له پاره ډیره ضروري وه.

لنډه دا چې: رښتیا، آسانتیا او ښکلا او د واقعیتونو بیانول د دې ادبي مکتب غوره ځانګړنې دي.

**استازي:** په فرانسه کې: بالزاک، استاندال، مادام بواري، په انګلستان کې: چارلیز دیکنس، ویلیام ثاکري، په روسیه کې: تولستوي، داستایوسکي، ماکسیم ګورکي، په المان کې: د همل او هولتز په امریکا کې: ارنست همینګوي، ویلیام فاکنر.

## ٤- ناتورالیزم (نچرلیزم):

ناتورالیزم کلمه په ادبي لحاظ په ادبیاتو کې د طبعیت دقیق تقلید او ډیرې زیاتې ستاینې په معنا ده او په اصطلاح کې د یو ادبي مکتب نوم دی چې په ادبیاتو کې د علمي او تجربي روش او لارې نه د کار اخیستلو باندې عقیده او باور لري.

دا ادبي مکتب د نولسمی پیړۍ په پای کې په فرانسه کې رامینځته او د شلمې پیړۍ تر لومړیو پورې یې ډیره وده او پرمختیا وکړه، ډیر پلویان یې پیدا کړل.

ددې مکتب پلویانو عقیده درلوده: څرنگه چې هر لیکوال یا شاعر د خپل چاپیریال او طبیعی شرایطو، لکه: نژاد، روزنی او تربیې او د خپلو وراثت د عواملو تر اغیز لاندې وي، جسمي او روحي ځانگړنې یې پر آثارو هم اغیزه کوي، لکه څنگه چې علمي مسایل څیړل کیږي د دوی آثار دې هم دغه ډول تر څیړنې او کره کتنې (د نقد) لاندې ونیول شي. دوی په دې هڅه کې وو چې د ادبیاتو له پاره هم د علومو په څیر د سنجش معیارونه پیدا کړي.

**ځانگړنې:**

۱- دا چې لیکوال یا شاعر د خپلو تجربو او آزمایښتونو بیانونکی دی، باید په لیکنه یا شعر کې له خپل تخیل او د هیجاناتو له دخالت نه ځان وژغوري.

۲- دینی او اخلاقي مسایل په شعر او ادب کې نه راوړي.

۳- د ادبي آثارو په تخلیق او پنځونه کې د خلکو د محاورې ژبه کارول، چې لیکوال او شاعر د واقعیتونو په بیانولو کې وفادار پاتې شي، څه کمی او زیاتی پکې ونه کړي.

٤- په جبر باندې په عقیدې لرلو او د خلکو ذات ته په کتلو ددې مکتب

پلویان د انسانان باطن ته گوري او په هغې چې څه ناولتیاوې او فسادونه گوري، هماغه د خپل قضاوت بنسټ او اساس گرځوي.

۵ - په دې ادبي مکتب کې د وراثت مسأله ډیره ارزښت لري او د دوی په عقیده د ادیبانو او هنرمندانو روح او فکر د جسماني او طبیعي عواملو تر اغیز لاندې راځي.

**مشهور استازي:** په فرانسه کې: امیل زولا، گې دوموپاسان، په امریکا کې: جک لندن، په انگلستان کې: جوج مور، په المان کې کرتزر او هولتس او په هالنډ کې مارسل امانتس.

## ۵ - سمبولیزم:

د سمبول لغوي معنا نښه یا علامه ده او سمبولیزم په اصطلاح کې هغه ادبي مکتب دی چې د ۱۹ پیړۍ په پای کې د ریالیزم ناتورالیزم او پارناس ادبي مکتبونو پر خلاف په فرانسه کې د نومیالي شاعر د شارل بودلر په مشرۍ مینځته راغی. دوی اعلان وکړ چې په شعر هیڅ ډول قید او بندنه مني. شعر باید د وزن او قافیې له قید نه آزاد وي. ساده، روان ښکلی او آهنگوال وي، خو دا لازمه نه ده چې د ټولنې د ټولو طبقو له پاره دې وړاندې شي. دوی په شعر کې عجیبه نا آشنا مسایل مطرح کول او له ژوند او ټولنې څخه یې لرې کاوه، داسې څه به یې په رمز او اشارو ویل چې عام خلک پرې نه پوهیدل.

**ځانگړنې:**

۱ - په شعر کې الهام او په ځرگند ډول د مسایلو له بیانولو سره مخالفت.

۲ - د ژوند په هکله بدبیني او نا هیلي توب او په نیکمرغۍ باور نه لرل.

۳ - په عالم غیب او له دې نړۍ څخه پرته پریوې بلې نړۍ باور او عقیده لرل.

٤- په دې نړۍ باورنه لرل او په دې باورنه کول چې زموږ شته والی دی چې دې نړۍ ته شکل ور بخښي.

٥- د ادبي مطالبو په بیانولو کې د یوې داسې لارې اختیارول چې هر څوک یې لولي په مخصوص ډول یکې د خپلې روحیې سره سم خپل حال او مقام درک کوي.

**نومیالی استازي:** په فرانسه کې: شارل بودلر، په بلژیک کې: موریس مترلینګ، په ایرلنډ کې: ویلیام باتلر په روسیه کې: ولادیمیر سولو ویف او په انګلستان کې: د یوید هر برت لارنس او نور.

**مأخذونه:**


۱- رضاسیدحسینی، مکتب های ادبي، جلد اول و دوم، انتشارات تهران، ایران ۱۳۳٤ هـ ش.

۲- نادر، وزین پور، (ډاکتر)، برسمند سخن، چاپ دوم، تهران، ۱۳٦۷ هـ ش.

۳- هیواد مل، زلمی، فرهنګ ادبیات پښتو، دریم ټوک، د چاپ او خپرولو دولتی کمیټه، ۱۳٦٦ هـ ش

٤- رښتین، صدیق الله، د پښتو ادبي مکتبونه، یونیورسټي بک ایجنسي، پیښور ۱۳٦۲ هـ ش.

٥- خسرو فرشید ورد (ډاکتر)، درباره ء ادبیات و نقد ادبي، تهران ۱۳٦۳، هـ ش

٦- زهرا، خانلری کیا (ډاکتره)، فرهنګ ادبیات فارسي، تهران، ایران.

۷- هاشمی، سید محی الدین، د علامه اقبال پرشاعرۍ د فارسي ادبي مکتبونو اغیزي (مقاله) تعاون مجله، ۱۳۸۱ هـ ش کال.

۸- هیواد مل، زلمي (سرمحقق) د پښتو ادبیاتو تاریخ، لرغونې او منځنۍ دوره، دانش خپرندویه ټولنه، پیښور، ۱۳۷۹ هـ ش.

۹- میمنت میر صادقی (ذوالقدر) واژه نامه ء هنر شاعری، تهران، ۱۳۷٦ هـ ش.

۱۰- پښتو-پښتو تشریحي قاموس، لومړی- دویم- دریم، څلورم ټوکونه، د افغانستان د علومو اکاډیمی، د ژبو او ادبیاتو مرکز.

شپېږم څپرکی:

# اولسي (فولکلوري) ادبيات

د ادب يا ادبياتو په يوې پيژندنه کې لولو چې: «د يوې ژبې ټول ليکلي (تحريري) او ناليکلي (شفاهي) منظوم او منثور هنري آثار ادبيات ګڼل کيږي.»

همدې پيژندنې ته په پاملرنې اولسي، عاميانه يا فولکلوري ادبيات د هر ملت او اولس په ادبي تاريخ کې ارزښتمنه ونډه لري او د هغو له يادونې پرته د يوې ژبې د ادبياتو مطالعه نيمګړې برېښي، نو د مخه تردې چې د اولسي ادبياتو په ډولونو او ځانګړنو څه ووايو د «فولکلور» د کلمې په لغوي او اصطلاحي پيژندنه، چې په نړيواله سطحه د دغه ډول ادبياتو له پاره استعماليږي، د خپل بحث لړۍ پيل کوو.

**لغوي او اصطلاحي پيژندنه:**

فولکلور، فرانسوي کلمه ده، لغوي معنا يې فرهنګونو: د خلکو ادبيات، اولسي پوهه او زده کړه راخيستې ده او په اصطلاح کې د کلتور هغه ځانګه ده چې د انساني مشخصو، ډلو، عنعنې، دودونه، نکلونه او انساني ارزښتونه، انګيرنې، شګومونه، اعتقادات او داسې نور پکې شامل دي.

فولکلور د محتوا له نظره درې برخې لري: ۱- شفاهي فولکلور، ۲- غير شفاهي فولکلور، ۳- نيم شفاهي فولکلور.

په شفاهي فولکلور کې محاورې، متلونه، سندرې، چيستانونه، فکاهيات (ټوکې ټکالې)، دودونه او اولسي قوانين او نور شامل دي. په غيرشفاهي فولکلور کې سيمه ييز هنرونه، موسيقي، سيمه ييز خواړه او سيمه ـ ييز ادب او په نيم شفاهي فولکلور کې خرافاتي عقيدې، سيمه ييزې لوبې، نڅاوې او نور راځي. په يوه بل پېژندنه کې لولو:

د فولکلور اصطلاح له دوو کلمو څخه جوړه ده: «فولک» (Folk) وګړي يا خلک او «لور» (Lore) ادبياتو يا زده کړې ته وايي. چې له دواړو څخه اولسي پوهه، د خلکو زده کړه يا د خلکو ادبيات جوړيږي. دا کلمه د لومړي ځل لپاره په ۱۸٤٦ م کال انګليسي پوه تامس استعمال کړه.

ځينو فولکلور څېړونکو د فولکلور له پاره پنځه ځانګړنې ښودلې دي:

۱ – په شفاهي توګه موجود وي، ۲ – په عنعنوي او دوديزه توګه موجود وي، ۳ – منظومه يا منثوره بڼه لري، ٤ – جوړونکي يا رامينځته کوونکي يې معمولاً معلوم نه دي، ٥ – د کلتور د جز په توګه په هر کلتور کې شته.

اوس چې مو « فولکلور » په لغوي او اصطلاحي لحاظ و پېژاند، د بحث اصلي موضوع ته راځو او په اولسي يا عاميانه (فولکلوري) ادبياتو بحث کوو:

لکه چې د مخه مو يادونه وکړه ولسي ادبيات د هر اولس، ټولنې او ملت په ادبي تاريخ کې ارزښتمنه ونډه لري او د هغې له يادونې او ورته پاملرنې پرته د هغه اولس او خلکو ادبي تاريخ نيمګړی ګڼل کيږي.

اولسي ادبيات معمولاً شفاهي بڼه لري او په هغو ټولنو او اولسونو کې زيات پياوړی وي چې د ليک لوست (سواد) خپريدنه پکې ډيره نه وي عامه شوي او وګړي يې له دغه نعمت څخه بې برخې وي.

زموږ هيواد او ټولنه هم د ځانګړو سياسي، ټولنيزو، اقتصادي، فرهنګي او جغرافيوي عواملو له امله د دغسې ټولنو او ولسونو د کتار په سر کې راځي، نو ځکه پکې د ليکلو ادبياتو په پرتله د دغه ډول ادبياتو پانګه درنه او شتمنه ده.

زموږ زياتر وګړو د پيړيو په پوړيو او اوږده تاريخي بهير کې خپلې هيلې، ارمانونه، غوښتنې، خوښۍ، غمونه، رنځونه، مينې او لنډه دا چې د ټولنيز ژوند ټول کړه وړه په دغو ډول ادبياتو کې منعکس کړي او په شفاهي توګه يې له يوه نسل څخه بل ته ليږدولي دي. د ليږدونې په دغه بهير کې د دغو ادبياتو زياته برخه هيره شوې او ورکه شوې ده او يا په بله وينا: زياتره د راويانو په له مينځه تللو سره دغه وخت په وخت دا يجاد شوي ادبيات هم له مينځه تللي دي او لکه صحرايي پخپله راټوکيدلي ګلان ورو – ورو مړاوي او پاڼې-پاڼې شوي دي. له همدې امله موږ د دغو ادبياتو ډيرې لرغونې بيلګې په لاس کې نه لرو. خو بيا هم هغه ډيره لږه برخه چې پاتې ده د هغې بيلا بېلو انواعو او ډولونو ته په کتنې موږ په ډاډ او باور سره دا ويلای شو چې: زموږ عامو ولسي وګړو که ليک لوست نشو کولی او د سواد له نعمت څخه بې برخې وو، خوپياوړی هنري ذوق او احساس يې درلود چې هغه يې د دغو ادبياتو په بېلا بيلو کالبونو کې ځای کړی او په ډيره په زړه پورې بڼه بيان کړی دي.

دلته د دې خبرې يادونه ضروري ده چې زموږ د هيواد د استوګنو بيلابيلو قومونو او اولسونو د شفاهي يا ناليکليو ادبياتو څومره والی او څرنګوالی سره توپير لري. په دې لنډ- تنګ ليکنې چوکاټ کې پر هغو هر اړخيزه څيړنه او د ټولو بيلا بيلو منظومو او منثورو ډولونو ښودنه ناشونې کار بريښي،

نو اړيو چې يوازې په عامه توگه د اولسي ادبياتو د منظومو او منثورو ډولونو چې په پښتو اودري ادبياتو کې يې بيلگې او نمونې لرو، نومونه واخلو او بيا دولسي او فولکلوري ادبياتو د ډيرو عامو ځانگړنو يادونه وکړو.

## داولسي ادبياتو ويش او ډلبندي:

ولسي ادبيات پر دووسترو برخو ويشل کيږي:

الف: منظوم اولسي ادبيات

ب: منثور يا نثري اولسي ادبيات

منظوم اولسي ادبيات په عامه توگه دا لاندې ډولونه لري:

لومړی: عامې اولسي سندرې يا شعرونه. دويم: خاصې اولسی سندرې.

## لومړی: عامې اولسی سندرې يا شعرونه:

عام اولسي شعرونه هغه دی چې وينا وال يا شاعريې نه وي معلوم، لکه: (۱) د ميندو سندرى چې خپلو ماشومانو ته يې وايي، (۲) د ماشومانو سندرې چې د لوبو په مهال او يا يې پخپل مينځ کې د مشاعرې په بڼه وايي. (۳) منظوم چيستانونه، (٤) داتڼ نارې، (٥) سروکی، (٦) لنډۍ، (۷) د نکلونو نارې، (۸) کاکړۍ غاړې، (۹) تاريخي نارې (چې د پښتو اولس ادب مهمې برخې دی)، (۱۰) دوبيتي او چهاربيتی ( دري اولسي ادب کې شته)، (۱۱) منظوم فالونه، (۱۲) منظوم متلونه، (۱۳) د ښځو ځينې سندرې چې په بيلا بيلو مراسمو کې ويل کيږي او داسې نور.

## دويم : خاصې اولسي سندرې يا شعرونه:

خاص اولسي شعرونه يا سندرې هغه دي چې وينا وال شاعران يې معلوم او د اولس پيژندل شوي خلک دي، دا لاندې ډولونه لري:

(۱) رباعي (مقام)، (۲) غزل، (۳) چاربيته، (٤) لوبه، (٥) بگتۍ (دا وروستـي درې يـوازې پـه پښتـو اولسـي ادب پـورې اړه لـري)، (٦) داستانونه او نور.

د يادونې وړ ده چې د اولسي منظوم ادب پورتني ډولونه يوازې نالوستو او بې سواد شاعرانو نه دي را مينځته کړي، بلکې زموږ ډيرو مشهورو شاعرانو هم په اولسي اوزانو او کالبونو شعرونه ويلي دي.

## ب : نثري (منثور) اولسي ادبيات:

اولسي نثـرونه هغـه اوږدي او لنډې خوږې او پخې وينـاوې دي چې د اولس په زړه کې را مينځته شوي، وينا وال يا اصلي را مينځتـه کوونکي يې نه دي معلوم او د ټول اولس ګډمال دی، خو لـه په خوله او سينـه په سينه له يو نسل څخه بل ته نقل شوي دي، دا لاندې ډولونه لري:

(۱) اولسي نکلونـه او حکـايتونـه، (۲) وړې کيسې، (۳) متلونـه، (٤) اصطلاحات او محاورې، (٥) تشبيهات او استعـارې، (٦) چستـانونه، (۷) تکيـه کـلامـونـه، (۸) رمزونـه او کنـايې، (۹) دعـاوې او ښيراوې، (۱۰) سټرې مه شې، (۱۱) ټوکې ټکالې (فکـاهيـات)، (۱۲) روايات، (۱۳) القاب او صفتونـه، (١٤) د ماشومانو لـه پاره کيسې او نکلونه (چې زياتره اخلاقي انتباهي بڼه لري).

## د فولکلوري ادب راټولونې اهميت:

دولسي منظومو او منثورو ادبياتو را ټولولو او لیکلو او په دې وسيله خونـدي کولو لـه پاره تـر يوې يا يوې نيمې پيړۍ مخکې زمانې پورې ځانګړې پاملرنـه نـه کيدلـه، پـه اروپـا کې د نولسمې پيړۍ پـه منځنيـو کلونـو کې د

څېړونکو او ادب پوهانو پاملرنه د ادب دغې ارزښتناکې برخې ته واوښتله او د هغې په راټولولو او کتابي بڼه خپرولو يې لاس پورې کړ. دغو پوهانو نه يوازې دا چې د خپلو هيوادونو او ولسونو، بلکې د ختيځو هيوادونو د ميشتو قومونو او ولسونو د ولسي ادبياتو په راټولونه او خپرونه يې پيل وکړ او دغسې يې د ولسي ادب يوه برخه له هېرېدو او ورکېدلو څخه وژغورله. د بېلګې په توګه د دغو پوهانو له ډلې څخه فرانسوي ختيځ پوه جميز ډارمستېټر (۱۸۴۹-۱۸۹٤ م) يادونه کولی شو چې د پښتو اولسي شعرونو بېلا بېل ډولونه يې په يوې مجموعه کې راټول او په ۱۸۸۸ م کال يې په پاريس کې د «پښتونخوا شعر هار و بهار» په نوم خپره کړه.

وروسته بيا کله چې زموږ په هيواد کې مطبوعات را مېنځته او عام شول ځينو ليکوالو د فولکلور را ټولونې ته هم پاملرنه وکړه او په سراج الاخبار بيا نورو خپرونو کې زموږ د دغو ادبياتو يو نيمه بېلګه خپره شوه. د روانې هجري لمريزې پېړۍ په لومړيو کې (۱۳۰۸ هـ ش) انجمن ادبي کابل، د کندهار ادبي انجمن (۱۳۱۱ هـ ش) پښتو ټولنه (۱۳۱٦ هـ ش) او دغسې نور فرهنګي مرکزونه جوړ او خپرونې را مېنځته شوې، ډېرو ليکوالو ته د فولکلوريکو څېړنو او خپرونو لارې چارې برابرې شوې. په دې لړ کې د متلونو، لنډيو او نورو ولسي شعرونو او کيسو مجموعې چاپ او خپرې شوې، د فولکلوريکو څېړونو سمپوزيمونه او سيمينارونه جوړ او په دې ډګر کې ارزښتمن کارونه تر سره شول.

## د اولسي ادبياتو ځانګړنې:

(۱) اولسي منظوم ادب د عربي عروضو او اوزانو تابع نه دی، خپل ملي ولسي وزنونه لري، په هجاء او سيلاب د تقطيع وړ دي.

(۲) اولسي ادبيات د موضوع په لحاظ د اولسي او کليوالي ټولنيزو، اقتصادي او کلتوري اړيکو ځرگندونکي دي، کليوال چاپيريال او د خلکو ژوند پکې منعکس کيږي.

(۳) ژبه يې ساده، سوچه او د خلکو يا اولس له ورځني محاورې سره برابر ده.

(٤) ډيره مبالغه او له حقيقته لرې خبرې او تصنع پکې نه ليدل کيږي.

(٥) د پرديو ژبو اغيزه په دې ادبياتو کې کمه او په نشت شمير ده.

(٦) دا چې د دغو ادبياتو زياته برخه د نالوستو او بيسوادو وګړو د ذهن او فکر محصول ده، او را مينځته کوونکي کې يې په اولس کې او سيږي د اولس د ټولو مسلطو کلتوري او ټولنيزو ارزښتونو او روابطو تابع دي.

(۷) ادبي لفظي او معنوي صنايع،تشبيهات او استعارات پکې له عقل او پوهې نه وتلې او غير طبيعي نه دي..

(۸) د ادبيات د اجتماعي ارزښتونو په لړلو سر بيره له لوړو هنري ارزښتونو څخه هم برخمن دي، چې زموږ د اولس د لوړ هنري او ادبي ذوق، ښه ځرگندويي او نماينده گی کولی شي.

(۹) په دې ادبياتو کې د پېښو بهير او د ژوند ځيرې کټ مټ انعکاس مومي.

(۱۰) په اولسي ادبياتو کې ښکلا، آسانتيا او رښتيا يا په بله ژبه ښکلی والی، آسانوالی او رښتيا والی په ښه بنه ځان ښکاره کوي.

# د ماشومانو ادبيات

ماشومان د ټولنې د وګړنيز (افرادي) ځواک د يوې سترې برخې په توګه خپل ځانګړي ادبيات لري چې پکې د دوی احساسات، عواطف، هيلې، غوښتنې او ارمانونه په يوه يا بله بڼه بريښي.

موږ د ماشومانو د ادبياتو په اړه د خپل بحث لړۍ د دغو ادبياتو په پيژندنې سره پيل کوو.

## پيژندنه:

د ماشوم د ادبياتو د پيژندنې په لړکې دا هم ويل کيږي چې د موضوع په لحاظ د ماشومانو او لويانو د ادبياتو ترمنځ هيڅ توپير نشته او ټول هغه څه چې له مستقيمې او رسمي زده کړې له پروګرام نه د باندې په هنري او ادبي بڼه وليکل او ترتيب شي د ماشومانو ادبيات بلل کيږي.

په يوه بله پيژند کې لولو:

د ماشومانو ادبيات د هغو شعري ، نثري ليکنو او ويناوو مجموعه ده چې په ټولنه کې د لويانو له خوا د ماشومانو د استفادې له پاره برابريږي.

## ويش او ډلبندي:

د ادبياتو د عمومي ويش او ډلبندۍ له مخې د ماشومانو ادبيات هم لومړی په نظم او نثر او بيا په دوو سترو برخو ويشل کيږي چې يوې ته يې شفاهي (ولسي او فولکلوري) ادبيات او بلې ته يې ليکلي يا تحريري ادبيات وايي.

اولسي يا شفاهي او فولکلوري ادبيات په عامه توگه هغه دي چې را مينځته کوونکي او وينا وال يې معلوم نه دي، د ټولنې گډ مال دی، لکه د ماشومانو له پاره فولکلوري سندري (شعرونه او ترانې) کيسې، چيستانونه، ټوکې ټکالې (لطيفې) او نور چې ماشومان يې پخپل مينځ کې وايي او يا يې لويان دوی ته د غوره بوختيا (سرگرمۍ) او ساعت تيرۍ له پاره وايي. لیکلی ادبيات بيا هغه دی چې نوريې د ماشومانو له پاره ليکي چې له اوريدلو يا لوستلو څخه يې پند او خوند واخلي. په دې برخه کې په عامه توگه د ماشومانو له پاره ليکلې کيسې، ډرامې، د شعرونو بيلابيل ډولونه او نور راځي چې ليکوال يا شاعريې د ځينو ځانگړو ښوونيزو روزنيزو او نورو هدفونو له مخې را مينځته کوي. دلته لازمه ده چې په دغو ادبي آثارو کې د نغښتو هدفونو په باب هم رڼا واچوو.

## د ماشوم په ادبياتو کې نغښتي هدفونه:

لکه چې څرگنده ده د هر ډول ادبي اثر په رامينځته کولو کې د اديب ځانگړی او ټولنيز هدفونه نغښتي وي. پخوا به ادبيات ځينو خلکو يو ډول بې هدفه وينا گڼله، دوی فکر کاوه چې ادبيات يوازې او يوازې انسان ته روحي خوند، خوښي او تسکين ور بخښي او د ساعت تيرۍ يوه وسيله ده.

خو اوس ادبپوهان دا نظريه په کلکه ردوي او وايي چې ادب د ښکلاييز، روحي لذت او تسکين ترڅنگ د ټولنيزې اخلاقي روزنې، اصلاح، سمون، ذهنونو د روښانولو او په خلکو کې د خوځښت راوستلو ستره بنسټيزه دنده هم لري او په هر ادبي اثر کې خامخا يو لوی هدف نغښتی وي.

همدي تکی په پاملرنه ویلای شو چې د هرې ژبې ادیبان (لیکوالان او شاعران) د ماشوم د ادبیاتو په رامینځته کولو کې هم خپل ځانګړي هدفونه لري او هغه خامخا پخپلو ایجاد کړو آثارو کې تعقیبوي چې ځینې دلته په ډیر لنډ ډول را اخلو:

۱- ماشوم ته د ژوند د چاپیریال (کور، کوڅه، ښوونځی) ورپیژندنه.

۲- ماشوم ته د ټولنې او په هغې پورې د ځینو اړوندو ارزښتونو ورپیژندنه.

۳- له لوستلو، زده کړې، مطالعې او لیکنې سره د ماشومانو مینه ذوق او علاقه پیدا کول.

٤- در اتلونکي ژوند له پاره هغوی ته د چمتووالی پوهه او معلومات ورکول او داسې نور.

## د ادبي آثارو ځانګړنې:

د ماشومانو له پاره د ځانګړو ادبي یا په بله وینا منظومو او منثورو آثارو را مینځته کولو، خپرولو ته په هره ټولنه کې بنستیزه اړتیا لیدل کیږي. دا کار یو لړ ټاکلي، منلي معیارونه او ځانګړنې لري، نو د ادبي آثارو رامینځته کوونکي اړ دي چې د خپلو دغه ډول ادبي آثارو د تخلیق پر وخت هغه په پام کې ونیسي.

دلته له دغو معیارونو او ځانګړنو څخه د ځینو یادونه کوو:

**الف: د شکل له مخې د ادبي آثارو څرنګوالی:**

(۱) د بڼې یا شکل له مخې باید د ماشومانو له پاره د رامینځته شویو آثارو د لیکلو لاره او سبک ساده او روان وي.

(۲) د لیکلو ژبه باید د ماشومانو له ژبې سره هماهنګي او برابري ولري.

(۳) جملې، عبارتونه یې باید لنډ او مفاهیم له هر ډول ابهام او پیچلتیا څخه خلاص وي.

(٤) د دغو ادبي آثارو پایلې (نتیجې) او پیغامونه باید څرګندوي چې ماشوم په آسانۍ سره وکړای شي د پیښو او د هغو د نتایجو ترمینځ اړیکې ټینګې کړي.

٥- څومره چې دغه ډول ادبي آثار په انځورونو او عکسونو ښکلي شي، زیاته اغیزه لري.

٦- د کتاب کاغذ، صحافت، دلیک د تورو شکلي ښکلا او ځلا هم هر یو پر خپل ځای ارزښت لري.

**ب- د محتوی او مضمون له مخې:**

(۱) هڅه دې وشي چې ماشومانو ته د لیکلو ادبي کتابونو او آثارو موضوعات د ماشومانو د عمر او سن له اړتیاوو او غوښتنو سره سمون ولري.

(۲) موضوعات باید د داسې ټولنیزو واقعیتونو پر بنسټ ولاړ وي چې ماشومان یې په طبیعي او عیني توګه ذهناً ومنلي شي او په زور پرې تحمیل نه کړای شي.

(۳) دغه مضامین او موضوعات باید په ماشومانو کې د انسان دوستۍ، زړورتیا، رښتینولۍ، خیر - ښېګنې او پر ځان د باور روحیه پیاوړې کړای شي او له درواغو، بدبېنۍ، غرور، پوچې، ستوغې وینا او هر ډول ناوړه اخلاقو څخه یې راوګرځوي.

(٤) دا ادبي آثار باید له ماشوم سره د ځان او جهان په پیژندنه کې په زړه پورې مرسته وکړای شي.

(٥) دغه موضوعات باید په ماشومانو کې د هنر، ښکلا پیژندنې او خوښونې ذوق پیاوړی کړي.

(٦) د ادبي آثارو موضوعات باید ماشومان د پوهې یا معلوماتو تر لاسه کولو ته ډیر مینه وال او لیوال کړي.




**مأخذونه:**

(۱) هیوادمل، زلمی (سر محقق)، اولسي سندرې، لومړی ټوک، د افغانستان د علومو اکاډمی، ۱۳۶۱ هـ ش.

(۲) رښتین، صدیق الله، (پوهاند) د پښتو ادبي مکتبونه او سبکونه، یونیورستی بک ایجنسی، پېښور ۱۹۸۸ م.

(۳) رفیع، حبیب الله، زرینې ځانګې، د افغانستان د علومو اکاډمي، ۱۳۶۰ هـ ش.

(٤) میمنت، میر صادقی، واژه نامهٔ هنر شاعری، تهران، ۱۳۷٦ هـ ش.

(٥) پښتو-پښتو تشریحي قاموس، څلورم ټوک، د افغانستان د علومو اکاډمی ۱۳٦٥ هـ ش.

(٦) خسرو، فرشید ورد (ډاکتر)، درباره ء ادبیات و نقد ادبي، جلد اول، تهران، ۱۳٦۳ هـ ش.

(۷) منوچهر علی پور، آشنایی با ادبیات کودکان، ایران، ۱۳۷۸ هـ ش.

(۸) محمد رفیع، د ماشومانو ګل غونچه، د اریک د ګرځنده کتابتونونو اداره، ۱۳۸۰ هـ ش.

## د اریک دګرځنده کتابتونونو د اداري خپاره شوي کتابونه

١- د افغانستان عمومي جغرافیه
٢- جغرافیای عمومی افغانستان
٢- د افغانستان تاریخي ودانۍ
٤- بناهای تاریخی افغانستان
٥- د افغانستان محلي خواړه
٦- ورزشهای محلی افغانستان
٧- سپینه کوتره
٨- کمان طلایی
٩- زده کړو چې ورزده کړو!
١٠- بیا موزیم تا بیاموزانیم!
١١- په افغانستان کې د چاپیریال ساتنه
١٢- حفاظت محیط زیست در افغانستان
١٢- په افغانستان کې د بوزغلیو او باغونو جوړونه او روزنه
١٤- تربیه و تهیه، بُزق و باغها در افغانستان
١٥- د تمدن سوغات
١٦- ارمغان تمدن
١٧- زلزله در افغانستان
١٨- په افغانستان کې زلزلې
١٩- معیوبین و جامعه
٢٠- معیوبین او ټولنه
٢١- د افغانستان لنډکی تاریخ
٢٢- تاریخ نشرده، افغانستان
٢٣- د چرګانو ساتنه او پالنه
٢٤- مرغداری
٢٥- دنیای کودک
٢٦- د ماشوم نړۍ
٢٧- نگاهی بر اوضاع اقتصادی افغانستان
٢٨- د افغانستان اقتصادي حالت ته یوه کتنه
٢٩- د شاتو مچیو روزنه
٣٠- زنبور داری
٣١- د افغانستان مشاهیر
٣٢- مشاهیر افغانستان
٣٣- د افغانستان کلک پوستي میوې
٣٤- میوه های سخت پوست افغانستان
٣٥- جغرافیاي ولایات افغانستان
٣٦- د افغانستان د ولایتونو جغرافیه
٣٧- تکنالوژی بایوگاز
٣٨- د بایوګاز تکنالوژي
٣٩- پرخوری یا خود خوري
٤٠- ډیر خوراکي
٤١- بازی های عامیانه اطفال
٤٢- د ماشومانو ولسي لوبې
٤٣-٤٤- لنډۍ ها
٤٥- رهنمای تشخیص و تداوی امراض چشم، گوش، گلو و بینی
٤٦- د سترګو، غوږ، ستوني او پزې ناروغیو د تشخیص او درملنې لارښود.
٤٧- سرگرمی با تجربه های علمی
٤٨- په عملي تجربو سره وخت تیرول
٤٩- په افغانستان کې کاني زیرمې
٥٠- ذخایر معدنی افغانستان
٥١- اساسات ماهی پروری
٥٢- د کبانو د روزلو لارښوونې
٥٣- اوبه د ژوند سرچینه
٥٤- آب سرچشمه، حیات
٥٥- تدبیر منزل
٥٦- د کور سمبالښت
٥٧- سبزی ها
٥٨- سابه
٥٩- د افغانستان مشاهیر (دویم ټوک)
٦٠- مشاهیر افغانستان (جلد دوم)
٦١- توصیه های مفید برای انکشاف باغداری در افغانستان
٦٢- په افغانستان کې د باغونو پرمختګ په هکله ګټورې لارښوونې
٦٣- شاهراه های افغانستان
٦٤- د افغانستان لوی لارې
٦٥- ورزش
٦٦- ورزش (پښتو)
٦٧- تاریخ مختصر وسایل اطلاعات جمعی در افغانستان
٦٨- په افغانستان کې د ډله ایزو اړیکو وسایلو لنډ تاریخ
٦٩- سیمای محیط زیست افغانستان
٧٠- د افغانستان د چاپیریال بڼه
٧١- اقتصاد
٧٢- اقتصاد (پښتو)
٧٣- تخنیک ابتدایی رادیو
٧٤- د راډیو لومړنی تخنیک
٧٥- د افغانستان مشاهیر (دریم ټوک)
٧٦- مشاهیر افغانستان (جلد سوم)
٧٧- دانستنی های مالداری و ترنری
٧٨- د وترنرۍ او مالدارۍ په هکله لارښوونې
٧٩- صنایع دستی افغانستان
٨٠- د افغانستان لاسي صنایع
٨١- هرات در دوره، تیموری ها
٨٢- هرات د تیموریانو په دوره کې
٨٣- نباتات صنعتی
٨٤- صنعتي بوټي
٨٥- جهان نما
٨٦- نړۍ ښود
٨٧- گلدسته، اطفال
٨٨- د ماشومانو ګل غونچه
٨٩- آب های تحت الارضی و معدنی افغانستان
٩٠- د افغانستان ترځمکې لاندې او کاني اوبه
٩١- روغه ټولنه
٩٢- جامعه، صحتمند
٩٣- شهر کابل در طی قرون
٩٤- کابل د پیړیو په اوږدو کې
٩٥- اطلس ولایات افغانستان
٩٦- د افغانستان د ولایتونو اطلس
٩٧- تجارت در افغانستان
٩٨- په افغانستان کې سوداګري
٩٩- سیری در امواج موسیقی
١٠٠- د موسیقۍ په څپو کې ...
١٠١- کمپیوټر (پښتو کتاب)
١٠٢- کمپیوټر (ترجمه دری)
١٠٣- باستانشناسی در افغانستان
١٠٤- لرغونپېژندنه په افغانستان کې



## د لیکوال لنډ ژوند لیک

**سید محي الدین هاشمي** د سیدهاشم زوی د ۱۳۳۶ هـ ش کال د غبرګولی (۱۹۵۷ م جون) په میاشت کې د ننګرهار ولایت د کوز کنړ ولسوالۍ د بډیالي په کلي کې زیږیدلی دی.

### زده کړه:

لومړنۍ، منځنۍ، ثانوي: دره ء نور لیسه (۱۳۵۶ هـ. ش فارغ)
لیسانس: کابل پوهنتون، د ژبو او ادبیاتو پوهنځی د پښتو ژبې او ادب څانګه (۱۳۶۱ هـ ش فارغ)
ماسټري: پیښور پوهنتون، پښتو ادبیات (۱۹۹۰ م)

### دندې:

الف: په هیواد کې: په کابل پوهنتون او ننګرهار پوهنتون کې د پښتو ادبیاتو استاد او د افغانستان د علومو د اکاډیمۍ محقق.
ب: د هجرت په چاپیریال کې: په دعوت او جهاد پوهنتون کې د پښتو ادبیاتو استاد، د متحد اسلامی تعلیمي نصاب او د GTZ بیفیر د تعلیمي نصاب غړی او د جهادي دایرة المعارف د تألیف، ترجمې او تدقیق د څانګې غړی او د یو شمیر خپرونو لیکوال غړې، مرستیال او مسوول مدیر او د انسانی مرستو د برابرولو ادارې (همکاری) د نشراتو غړی.

### آثار:

(الف) چاپ: د لیکوالۍ فن، د پښتو ګرامر (ژباړه)، د سر درو توتیان، د افغانستان مشاهیر لومړی، دویم او دریم ټوکونه، ابدي ژوندي، په افغانستان کې د ډله ایزو اړیکو د وسایلو لنډ تاریخ (ژباړه) د پنځم ټولګی پښتو، شپږم ټولګی پښتو، د ماشومانو او لسی لوبی (ژباړه) او همدا اثر (ادب پوهنه).
(ب) ناچاپ: د ادبي اصطلاحاتو تشریحی فرهنګ، د وینا هنر او د پښتو اولسی ادبیات او ... برسېره پر دې یې په سلګونو مقالې دننه په هیواد او د هجرت د چاپیریال په خپرونو کې خپرې شوي دي.




د اریک د ګرځنده کتابتونونو د خپرونو لړۍ
پرله پسې نومره ۱۰۵